

**د پوهنې وزارت**

د تعلیمي نصاب د پراختیا او د ښوونکو د روزنې معینیت

د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تالیف لوی ریاست

# تفسیر شریف

درسي کتابونه د پوهنې په وزارت پورې اړه لري په بازار کې يې اخيستنه او خرڅونه په کلکه منع ده. له سر غړونکو سره قانوني چلن کیږي.

moe.curriculum@gmail.com

## لسم ټولګی

تفسیر شریف - لسم ټولګی



د چاپ کال: ۱۳۹۶ هـ. ش



# ملي سرود

دا وطن افغانستــان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښتـون او هــزاره وو
ورسـره عرب، گوجر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هیــواد به تل ځلیږي
په سـینـه کې د آسـیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عــزت د هــر افغان دی
هر بچی یې قهرمــان دی
د بــلـوڅــو د ازبکــو
د تـرکمنــو د تـاجکــو
پـامیریـان، نورسـتانیـان
هــم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنـه آسـمان
لکــه زړه وي جـاویــدان
وایــو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

**مضمون:** تفسیر شریف

**مؤلفین:** د تعلیمي نصاب د اسلامي زده کړو برخې د درسي کتابونو مؤلفین

**اډیټ کوونکي:** د پښتو ژبې د اډیټ دیپارتمنت غړي

**ټولګی:** لسم

**د متن ژبه:** پښتو

**انکشاف ورکوونکی:** د تعلیمي نصاب د پراختیا او درسي کتابونو د تألیف لوی ریاست

**خپروونکی:** د پوهنې وزارت د اړیکو او عامه پوهاوي ریاست

**د چاپ کال:** ۱۳۹۸ هجري شمسي

**د چاپ ځای:** کابل

**چاپخونه:**

**برېښنالیک پته:** curriculum@moe.gov.af

## د پوهنې د وزیر پیغام

اقرأ باسم ربک

د لوی او ښښونکي خدای ﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند راښښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفی ﷺ چې الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیا کې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تأسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدای ﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام او د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

د پوهنې وزیر

دکتور محمد میرویس بلخي

## د موضوعاتو فهرست

**سرليک** **مخونه**

# د تفسیر د علم مفهوم او ارزښت

## د تفسیر تعریف

تفسیر په لغت کې بیانولو، څرگندولو او د معنا ظاهرولو ته وايي.

د مفسرینو په اصطلاح کې: تفسیر داسې یو علم دی چې د هغه په واسطه د قرآن کریم د الفاظو معناوې، حکمونه او حکمتونه پېژندل کېږي.

**د تفسیر د علم تاریخ**

د قرآن کریم تفسیر یو له هغو مهمو او غوره شرعي علومو څخه دی چې دنده یې د قرآن کریم ښوونه او د انسان له توان سره سم د هغه د معنا، احکامو او حکمتونو بیانول دي.

د تفسیر علم د اسلام له لومړي پړاو څخه پیل شوی او رسول الله صلی الله علیه وسلم د قرآن کریم لومړنی مفسر و چې له اړتیا سره سم یې صحابه وو ته د قرآن کریم زیات آیتونه تفسیر کړي دي.

د صحابه کرامو په دور کې د تفسیر علم پراختیا وموندله او د دوی له منځه څلور خلیفه گان، عبدالله بن عباس، عبدالله بن مسعود، ابی بن کعب رضي الله تعالی عنهم او داسې نور د لویو مفسرینو په توگه راښکاره شول.

د تابعینو په دور کې د تفسیر علم ته پاملرنه نوره هم زیاته شوه، د حسن بصري، قتاده بن دعامه، عکرمه، مجاهد بن جبر او سعید بن جبیر رحمهم الله په څېر لویو علماوو د اسلامي نړۍ په بېلابېلو سیمو کې د شاگردانو په تربیه کولو سره دې علم ته ستر خدمتونه تر سره کړل.

د تابعینو له دور څخه تر دې دمه د تفسیر او علوم القرآن په هکله په عربي او نورو ژبو کې په زرگونه ټوکه کتابونه لیکل شوي چې قرآن کریم ته د مسلمانانو د مخلصانه خدمتونو څرگندونه کوي. د نړۍ پوهان په دې خبره په یوه خوله دي چې: څومره قرآن کریم ته پاملرنه شوې، هغومره انسانانو بل کوم کتاب ته پام نه دی اړولی او نه یې په دې کچه د کوم بل کتاب په اړه لیکنې، تحقیق او علمي څېړنې تر سره کړې دي.

د قرآن کریم له مهمو تفسیرونو څخه د امام طبري تفسیر، د شاه پور اسفراییني تفسیر، د میبدي کشف الأسرار تفسیر، د زمخشري کشاف تفسیر، د امام فخرالدین رازي تفسیر کبیر، د

بیضاوي تفسیر، د نسفي تفسیر، د ابن کثیر تفسیر او د داسې نورو تفسیرونو نومونه یادولای شو.

**د تفسیر علم ته د افغانستان د علماوو خدمت**

زموږ ګران هېواد افغانستان چې ځلانده او وياړلی فرهنګي او تمدني تاریخ لري، د لویو قرآن پوهانو او د تفسیر د مشهورو علماوو زانګو ده چې له دې جملې څخه د بېلګې په ډول د شیخ الاسلام خواجه عبدالله انصاري هروي د۴۸۱هــ کال متوفی، ابوبکر عتیق سور ابادي هروي د ۴۹۴هــ کال متوفی، امام فخرالدین رازي د ۶۰۶هــ کال متوفی، مولانا حسین واعظ کاشفي د ۹۱۱هــ کال متوفی، مولانا مراد علي کاموي د۱۲۹۴هــ کال متوفی مولانا یعقوب چرخي او معاصر عالم مولانا سلطان عزیز (عزیز) نومونه یادولای شو.

**د تفسیر د علم ارزښت**

د تفسیر د علم ارزښت او اهمیت په دې کې دی چې له موږ سره د قرآن کریم په زده کړه او د الله پاک د اوامرو او نواهیو په پوهه کې مرسته کوي، ترڅو د اسلامي نظام او اسلامي قانون د بنسټ (قرآن کریم) په لارښوونو وپوهېږو، عمل پرې وکړو او له دې لارې په دنیا کې نېکمرغه ژوند او په آخرت کې بریالیتوب تر لاسه کړو.

**د تفسیر ډولونه**

د تفسیر د علم پراختیا، د قرآن کریم په معنا او حقایقو کې د علمي څېړنو بېلابېلو لارو چارو او د مفسرینو مختلفو تګلارو ته په کتو سره د تفسیر علم په ګڼو ډولونو وېشل شوی چې ځینې ډولونه یې په لاندې توګه تشریح کوو:

**۱- د محتوا او مضمون له پلوه:** له دې پلوه تفسیر په دوو ډولونو وېشل شوی:

الف. نقلي تفسیر یا تفسیر بالمأثور.

ب. تفسیر بالرأی یا پر اجتهاد ولاړ تفسیر.

أ: په نقلي تفسیر یا تفسیر بالمأثور کې په صحیح نقل تکیه کېږي چې په لاندې ډولونو دی:

۱- د قرآن تفسیر په قرآن سره.

۲- د قرآن تفسیر په سنت سره، ځکه سنت (احادیث) د الله ﷻ د کتاب بیانوونکي دي.

۳- د قرآن تفسیر د صحابه کرامو په روایتونو سره، ځکه صحابه رضي الله عنهم د الله ﷻ په کتاب تر ټولو خلکو ښه پوهیدل.

۴- د قرآن تفسیر د لویو تابعینو په اقوالو او ویناوو سره، ځکه هغوی اکثره خپله پوهه او علم له صحابه وو څخه زده کاوه.

هغه تفسیر چې پر نقل بنا وي په واقعیت کې د الله ﷻ د کتاب د تفسیر ډېره ښه طریقه ګڼل کېږي، ځکه د قرآن، سنتو، د صحابه وو او تابعینو له ویناوو څخه ګټه اخیستل د قرآن کریم د نصوصو په پوهه کې مرسته کوي او د قرآني معناوو په پوهېدنه کې خلک له غلطۍ او ښوییدنې څخه ژغوري.

ب. تفسیر بالرأی یا پر اجتهاد ولاړ تفسیر:

په رایه بنا شوی تفسیر هغه تفسیر دی چې مفسر د خپلې خوښې کړې معنا د بیانولو په هکله د عربي ژبې او نورو شرعي علومو د قواعدو په رڼا کې په خپله ځانګړې پوهه اعتماد او تکیه کوي او د خپل فهم او نظر په اساس احکام او حکمتونه را وباسي.

**په رایې د بنا شوي تفسیر حکم**

هغه تفسیر چې په اجتهاد او خالصه رایه بنا شوی وي او پر کوم اصل ولاړ نه وي، د تفسیر بالرأی المذموم په نامه یادېږي. دا ډول تفسیر حرام او عمل ور باندې روا نه دی، خو که چېرته څوک د ژبې د تفسیر د اصولو او د شریعت په دایره کې په دې طریقه قرآن کریم تفسیر کړي پروا نه لري او دې ته تفسیر بالرأی المحمود ویل کېږي.

**د تګلارو له پلوه د تفسیر ډولونه**

د اسلوب او تګلارو له پلوه تفسیر په څلور ډوله دی: تحلیلي تفسیر، موضوعي تفسیر، اجمالي تفسیر او مقایسوي (پرتله ییز) تفسیر.

په تحلیلي تفسیر کې مفسر د قرآني نص هر اړخیز تحلیل کوي او د آیت ټول اړخونه د څېړنې او تحقیق لاندې نیسي. په موضوعي تفسیر کې مفسر د یوې ټاکلې موضوع په اړه قرآني آیتونه راټولوي او په ځانګړې طریقه یې شرحه او تفسیر کوي. په اجمالي تفسیر کې په آسانه، لنډه، عام فهمه ژبه او ساده ډول، قرآني آیتونه داسې تفسیر کېږي چې ټول خلک ورڅخه ګټه واخیستلای شي، خو په مقایسوي (پرتله ییز) تفسیر کې د ټاکلو قرآني آیتونو په اړه د مفسرینو د ویناوو پلټنه، څېړنه او پرتله تر سره کېږي.

**د قرآن کریم د نازلیدو څرنګوالی**

د قرآن کریم نازلېدنه په دوو طریقو سره شوې چې په لنډ ډول یې شرحه کوو:

۱- قرآن کریم د لومړي ځل لپاره په مجموعي توګه یو ځلي د قدر په شپه بیت العزت ته چې د دنیا په آسمان کې موقعیت لري نازل شوی دی لکه: چې قرآن کریم هم د قدر په سورت کې ورته اشاره کړې ده: ﴿إِنَّا أَنزَلْنَاهُ فِي لَيْلَةِ الْقَدْرِ﴾ **ژباړه**: بېشکه موږ دا (قرآن کریم) د قدر په شپه کې نازل کړی.

۲- په تدریجي توګه د زماني او پېښو د اړتیاوو او غوښتنو سره سم د قرآن کریم نازلېدل، لکه د (العلق) سورت لومړني آیتونه چې د حراء په غار کې د لومړي ځل لپاره په پیغمبر ﷺ باندې نازل شول او په درویشتو کلونو کې د پیغمبر ﷺ تر وفاته پورې بشپړ شو.

**فعالیت:**
ښوونکی دې زده کوونکي په دوو ډلو ووېشي او له هغوی څخه دې وغواړي چې هره ډله دې د دوو تفسیرونو نوم له مفسر سره ولیکي او بیا دې د هغوی په هکله لنډه څېړنه وکړي.



## پوښتنې

لاندېنیو پوښتنو ته ځوابونه ووایاست:

۱- تفسیر په لغت کې څه ته وايي؟.

۲- په اصطلاح کې د تفسیر اطلاق په کوم علم کېږي؟

۳- تفسیر په څو ډوله دی؟ او هر ډول یې د کومو ځانګړتیاوو لرونکی دی؟

۴- د تفسیر له ډولونو څخه د هریو ډول حکم شرح کړئ؟

۵- قرآن کریم څرنګه نازل شوی دی؟

۶- د ځینو مهمو تفسیرونو نومونه واخلئ.

۷- د تفسیر په برخه کې د افغانستان د علماوو پر خدمتونو رڼا واچوئ.

۸- د قرآن کریم نزول څرنګه و؟

# د فاتحې سورت تفسير

بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

﴿ٱلۡحَمۡدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ۞ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ۞ مَٰلِكِ يَوۡمِ ٱلدِّينِ ۞ إِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَإِيَّاكَ نَسۡتَعِينُ ۞ ٱهۡدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلۡمُسۡتَقِيمَ ۞ صِرَٰطَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِمۡ غَيۡرِ ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ﴾ [الفاتحة ١-٧]

**د کلمو معناوې**

ٱلۡحَمۡدُ: ثنا، ستاينه.

رَب: څښتن، پروردګار– پالونکی او کار جوړوونکی.

ٱلۡعَٰلَمِينَ: د عالم جمع يعنې له الله تعالیﷻ څخه پرته هر موجود.

ٱلدِّينِ: حساب، جزاء او بدله.

ٱهۡدِنَا: راوښيه موږ ته.

ٱلصِّرَٰط: لار.

ٱلۡمُسۡتَقِيم: سمه، سيخه او نيغه.

ٱلۡمَغۡضُوبِ: هغه کسان چې د اللهﷻ د غضب او عذاب مستحق وي.

ٱلضَّآلِّين: لار ورکي، (هغه کسان چې حق يې نه وي پيژندلی).

**ژباړه**

ټولې ستاينې يوازې الله پاک لره دي چې پالونکی د ټولو عالميانو دی. ډېر زيات مهربان او پوره رحم کوونکی دی، مالک (د ټولو چارو) د ورځې د جزا دی، خاص تاته عبادت کوو او خاص له تا څخه مرسته غواړو. وښيه موږ ته سمه لاره! د هغو کسانو لاره چې انعام کړی تا پر هغو باندې، نه لاره د هغو بدو کسانو چې غضب کړی شوی پر هغو باندې او نه لاره د هغو بدو کسانو چې گمراهان دي.

**په فاتحې سره د سورت د نومولو وجه**

د فاتحې سورت مکي دی، يعنې له هغو سورتونو څخه دی چې په مکه معظمه کې نازل شوی دی او د فاتحې په نامه ځکه نومول شوی چې قرآن کريم په دې سورت پيل شوی دی. د نبي کريم ﷺ په احاديثو کې هم ددې سورت لپاره دغه نوم ذکر شوی دی، لکه: چې پيغمبر ﷺ فرمايلي دي: «لاَ صَلاَةَ لِمَنْ لَمْ يَقْرَأْ بِفَاتِحَةِ الْكِتَابِ»[1] يعنې څوک چې د فاتحې سورت ونه وايي لمونځ يې نه صحيح کېږي.

**د فاتحې سورت نومونه**

فاتحه سورت ډېر نومونه لري، يو شمېر مفسرينو د فاتحې سورت لپاره تر شلو زيات نومونه ذکر کړي دي چې ځينې يې دا دي: الفاتحة، أم القرآن، السبع المثاني، الكنز، الوافية، الكافية، سورة الدعاء او داسې نور.

**تفسير**

الله تعالیﷻ خپل کتاب په ﴿ بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴾ سره پيل کړی دی، تر څو هر مسلمان په دې وپوهېږي چې د پام وړ هر کار بايد د الله تعالیﷻ له نوم سره پيل شي، ځکه هر کار چې د الله له نامه پرته پيل شي، هغه به نيمگړی وي.

**الله**: د حقيقي معبود لپاره خاص نوم دی، پرته له اللهﷻ يې په بل چا اطلاق نشي کېدای او د دغه نوم بدلول په جمع او تثنيه سره هم روا نه دی.

ٱلرَّحۡمَـٰنِ ٱلرَّحِيمِ: رحمان او رحيم دواړه لفظونه د (رحمت) له کلمې څخه اخيستل شوي دي. رحمت د انسانانو په حق کې د زړه د نرمښت په معنا دی چې همدردۍ او احسان ته يې هڅوي، رحمت د الله له صفتونو څخه يو صفت دی چې ځان ته يې غوره کړی دی.

---

(۱) سنن الكبرى للبيهقي.

دا سورت د الله پاک په حمد او ستاينه پیل شوی او حمد په ژبې سره د نعمت د ښندونکي ستاینه ده، د نعمت ښندنې او لورونکي الله دی، نو یوازې الله تعالی د دې ستاینې وړ او لایق دی او بس.

ځینې هغه صفتونه چې په دې سورت کې الله تعالی ته ذکر شوي او هغه ذات د دې ثنا او ستاینې لایق ګرځوي دا دي چې هغه ﴿ رَبِّ ٱلۡعَٰلَمِينَ ﴾ دی او معنا یې پاس ذکر شوه.

همدارنګه الله ﴿ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ﴾ دی. الله ﷻ د دې آیت په ذکر کولو سره بیانوي چې هغه ذات په عین حال کې چې د ټولو مخلوقاتو پالونکی او مالک دی، پر خپل مخلوق باندې (رحمن او رحیم) هم دی په دې معنا سره چې الله تعالی ښښونکی او مهربان دی.

بل دا چې الله تعالی ﴿ مَٰلِكِ يَوۡمِ ٱلدِّينِ ﴾ دی. دا دریم صفت دی چې الله ﷻ د خپل ځان لپاره دلته ذکر کړی دی.

مالک د مِلک څخه اخېستل شوی د میم په کسره، مِلک د یوه شي تر لاس لاندې راوستل دي چې په هغه کې په تصرف هم قادر وي، یعنې الله تعالی د قیامت د ورځې بشپړ مالک او متصرف دی او په هغه ورځ به د حساب حاکمیت او اختیار یوازې له ده سره وي.

دا ځینې هغه صفتونه دي چې الله تعالی د خپل ځان لپاره بیان کړي دي لکه: د ربوبیت، رحمت او د جزا د ورځې مالکیت چې یوازې الله تعالی په دې صفتونو ستایل کېږي.

نو هغه ذات چې د دې صفتونو لرونکی وي هغه د دې لایق او وړ دی چې مونږ عبادت، بنده‌ګي، مرسته، غوښتنه او خپله دعا په ده پورې منحصره کړو، نو ځکه الله تعالی فرمایلي: مؤمن بنده دې الله ﷻ ته مخ واړوي او ودې وایي چې:﴿ إِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَإِيَّاكَ نَسۡتَعِينُ ﴾ (ای زمونږ پالونکیه) یوازې ستا عبادت کوو او یوازې له تا څخه مرسته غواړو.

**عبادت:** د الله ﷻ په وړاندې له قلبي احساس سره د خشوع او عاجزۍ ورو ستې پوړۍ ده او په هره اندازه چې انسان په عـــــبادت او بنــدګۍ کې الله ﷻ ته توجه واړوي په همغه اندازه شرف او عزت حاصلوي. له الله ﷻ څخه مرسته غوښتل زمونږ د حقیقي بنـــــده‌ګۍ نښه ده، ځکه انسان د الله ﷻ د قوت او عظمت په وړاندې د ضعف او بېوزلۍ احساس کوي او له الله ﷻ څخه غواړي چې له ده سره مرسته وکړي.

د ﴿ إِيَّاكَ نَعْبُدُ وَإِيَّاكَ نَسْتَعِينُ ﴾ په جمله کې د مفعول وړاندې والی، الله تعالی ته د عبادت په حصر او ځانګړتیا دلالت کوي او د جملې معنا داسې راځي: یوازې او یوازې ستا عبادت کوو او یوازې او یوازې له تا څخه مرسته غواړو.

حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه د دې آیت په تفسیر کې فرمایلي: یوازې ستا عبادت کوو او له تا پرته د بل چا عبادت نه کوو[1].

نو پر دې بنسټ د عبادت ټول ډولونه، لکه: سجده، رکوع، نذر، قرباني (حلاله)، دعا، مرسته غوښتل، ویره، هیله، توکل او داسې نور، یوازې د الله لپاره دي او هېڅوک ورسره باید پکې شریک نه کړای شي.

﴿ ٱهۡدِنَا ٱلصِّرَٰطَ ٱلۡمُسۡتَقِيمَ ۝ صِرَٰطَ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِمۡ غَيۡرِ ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ﴾.

**هدایت:** یوې موخې ته د رسېدلو لپاره لارښوونه هدایت بلل کېږي. د هدایت بله معنا بیانول دي، دا کلمه غالباً د خیر په لور استعمالېږي نو د دې دوو آیتونو بشپړه معنا دا ده چې:

ای پروردګاره! موږ ته د هغې سمې او نیغې لارې لارښوونه وکړه چې موږ د دنیا او آخرت نیکمرغیو ته رسوي، د هغو بنده ګانو لاره چې تا پر هغوی خپل نعمت لورولی دی، نه لاره د هغو کسانو چې د خپلو ناوړه عملونو او د حق د لارې نه د کږېدو له کبله د قهر او غضب وړ ګرځېدلي دي.

د مفسرینو د ویناوو پر بنسټ د ﴿ ٱلَّذِينَ أَنۡعَمۡتَ عَلَيۡهِمۡ ﴾ څخه مراد انبیاء – علیهم السلام– صدیقین، شهداء، صالحین او د الله پاک ټول نېک بندګان دي.

مفسرینو ویلي دي چې له ﴿ ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ ﴾ څخه مراد هغه کسان دي چې حق پیژني او بیا هغه پرېږدي چې په راجحه وینا له دوی څخه یهود مراد دي او له ﴿ ٱلضَّآلِّينَ ﴾ څخه هغه کسان مراد دي چې حق نه پیژني او هغوی نصارا دي.

---

[1] - تفسیر أبي سعود

**د لوست ګټې او لارښوونې**

د فاتحې مبارک سورت ډېرې ګټې او لارښوونې رانغاړي چې ځینې یې دا دي.

- ❖ حمد او ستاینه یوازې په الله تعالی پورې منحصره ده، هغه د ټولې نړۍ او نړیوالو پیداکوونکی او پالونکی دی او د قیامت په ورځ یوازې هغه واکدار او متصرف دی.
- ❖ باید یوازې د الله په دربار او حضور کې بنده‌ګي، عاجزي او خشوع وکړو او یوازې له هغه څخه مرسته وغواړو، لکه: څرنګه چې پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «إِذَا سَأَلْتَ فَاسْأَلِ اللهَ، وَإِذَا اسْتَعَنْتَ فَاسْتَعِنْ بِاللهِ» یعنې کله چې څه شی غواړې، نو له الله ﷻ څخه یې وغواړه او کله چې دې مرسته غوښتله، نو یوازې له الله ﷻ څخه یې غواړه.
- ❖ نیکو اعمالو ته ترغیب او هڅول، ترڅو انسان د قیامت په ورځ په نیکانو کې حساب شي او له باطل پرستۍ نه وېرول ، ترڅو انسان د قیامت په ورځ له باطل پرستو څخه ونه ګڼل شي.

**فعالیت**

زده کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او بیا دې ورڅخه وغوښتل شي چې د دې مبارک سورت څخه دې له درو یادو شویو ګټو سربېره دوې نورې ګټې هم راوباسي.



**پوښتنې**

۱- ولې د فاتحې سورت په ﴿ بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ ﴾ پیل شوی، حکمت پکې څه دی؟

۲- له ﴿ مَٰلِكِ يَوۡمِ ٱلدِّينِ ﴾ څخه مراد څه دی؟

۳- له ﴿ إِيَّاكَ نَعۡبُدُ وَإِيَّاكَ نَسۡتَعِينُ ﴾ مبارک آیت څخه موږ څه زده‌کړه ترلاسه کوو؟

۴- له ﴿ ٱلۡمَغۡضُوبِ عَلَيۡهِمۡ وَلَا ٱلضَّآلِّينَ ﴾ څخه کوم خلک مراد دي؟

۵- له هدایت څخه مطلب څه دی؟

۶- د دې سورت له ګټوڅخه دوې ګټې چې مسلمانانو ته لارښوونه کوي، بیان کړئ؟

دريم لوست

# په علم او قلم سره د وحي پیل

قال تعالی: ﴿ ٱقۡرَأۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلَّذِي خَلَقَ ۝ خَلَقَ ٱلۡإِنسَٰنَ مِنۡ عَلَقٍ ۝ ٱقۡرَأۡ وَرَبُّكَ ٱلۡأَكۡرَمُ ۝ ٱلَّذِي عَلَّمَ بِٱلۡقَلَمِ ۝ عَلَّمَ ٱلۡإِنسَٰنَ مَا لَمۡ يَعۡلَمۡ ﴾

[العلق: ١–٥]

### د کلمو او جملو معناوې

ٱقۡرَأۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ: ولوله د خپل پالونکي په نامه.

عَلَقٍ: ترلې (ټینګه) وینه چې د انسان د پیدایښت دویمه مرحله ده.

عَلَّمَ بِٱلۡقَلَمِ: د قلم په واسطه یې انسان ته لیکل او تدوینول وروښودل.

### ژباړه

ولوله اې پیغمبره د خپل رب په نوم چې هغه پیدا کړ. د کلکې شوې وینې له یوې ټوټې څخه یې انسان هست کړ. ولوله او ستا رب له هر چا څخه ډېر مهربانه دی چې هغه د قلم په مرسته علم وښود. انسان ته یې هغه علم ورکړ چې هغه پرې نه پوهیده.

### د دې آیتونو شان نزول

امام احمد بن حنبل او شیخین (بخاري او مسلم) د حضرت بي بي عایشې رضي الله عنها څخه د دې آیتونو شأن نزول داسې نقلوي: د وحې پیلیدل په رسول الله ﷺ باندې داسې و چې پیغمبرﷺ لومړی رښتیني خوبونه لیدل، هرخوب به یې چې ولید د روڼ سهار په څېر به رښتینی کېده، بیا رسول الله ﷺ ګوښه والي ته مخه کړه او ګوښه والی به یې خوښیده، د حرا غار ته به یې تشریف یوړ او طاقې شپې به یې د حرا په غار کې په یوازې والي او راز او نیاز کې تیرولې، بیا به خپلې کورنۍ ته راستنیده او توښه به یې برابروله او بېرته به هماغه غارته تللو.

نبي کریم ﷺ د حرا په غار کې و چې یوه پرښته ورته ښکاره شوه او ویې ویل: ولوله، ده وویل: زه لوستونکی نه یم، پیغمبر ﷺ وفرمایل: زه یې ډیر ټینګ په غیږ کې ونیولم او بیا یې پریښودم او ویې ویل: ولوله، ما وویل: زه لوستونکی نه یم. بیا یې دویم ځلې سخت ټینګ په غیږ کې ونیولم او بیا یې پریښودم او راته یې وویل: ولوله، ما وویل: زه لوستونکی نه یم، بیا یې دریم ځلې ډیر سخت ونیولم او بیا یې پریښودم او ویې ویل: ﴿ ٱقۡرَأۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلَّذِي خَلَقَ ۞ خَلَقَ ٱلۡإِنسَٰنَ مِنۡ عَلَقٍ ۞ ٱقۡرَأۡ وَرَبُّكَ ٱلۡأَكۡرَمُ ۞ ٱلَّذِي عَلَّمَ بِٱلۡقَلَمِ ۞ عَلَّمَ ٱلۡإِنسَٰنَ مَا لَمۡ يَعۡلَمۡ ﴾. ژباړه یې مخکې تېره شوې ده.

**تفسیر**

### د وحې د پیلیدو ځرنګوالی

دا د قرآن کریم لومړني آیتونه دي چې نازل شوي او نبوت ورباندې شروع شوی دی. دغه آیتونه جبرائیل علیه السلام په پیغمبر ﷺ باندې په داسې حال کې نازل کړل چې د حرا په غار کې د مناجات او راز او نیاز په حالت کې و، الهي وحې د (اقرأ) په امر نازله شوه. حال دا چې پیغمبرﷺ په لیک او لوست نه پوهیده، خو جبرائیل علیه السلام خپل امر ته د (اقرأ) په وینا سره دوام ورکړ، چې په دې امر ټینګار کول د علم، پوهې او زده کړې اهمیت، ارزښت او فضیلت را په ګوته کوي، ځکه د علم د زده کولو تر ټولو ګټوره او ارزښتناکه لاره همدا لوستل دي او د ﴿ ٱقۡرَأۡ بِٱسۡمِ رَبِّكَ ٱلَّذِي ﴾ معنا دا ده چې د خپل پالونکي په نامه او امر ولوله، نو معلومه شوه چې لوستل او ویل یو الهي امر دی.

### د دې آیتونو ځرګند دلایل

دغه قرآني نصوص په دې دلالت کوي چې: زموږ زده کړه باید د الله ﷻ په نامه وي، نو مسلمانان باید ټول علوم او فنون د الله ﷻ په نامه او د هغه د رضا لپاره زده کړي.

بل دلیل یې دا دی چې الله ﷻ د خپل پیغمبر په ژبه په داسې حال کې چې لوستونکی نه و له اعجاز ځخه ډک قرآن کریم جاري کړ، نو باید وپوهېږو، هغه ذات چې کاینات یې پیدا کړي په دې هم قادر دی چې د لوستلو او ویلو توان په انسان کې پیدا کړي.

وروسته بیا له علقې (یوې ټوټې پرنډې وینې) څخه، د انسان په پیدایښت کې د الله تعالی عظمت بیان شوی دی، دا د الله ﷻ د قدرت نښه ده چې انسان یې لوړو پوړیو ته رسولی او د علم او پوهې دروازې یې د ده پر مخ پرانستلي دي ځکه هغه کریم، مهربانه او ښښونکی ذات دی.

### د الله ﷻ لورینې او نعمتونه

د الله ﷻ تر ټولو ستره لورینه د انسان له پیدایښت څخه وروسته هغه ته د علم ورکړه ده چې د قلم د نعمت په واسطه یې هغه ته ښودنه کړې ده، دا جامده وسیله یې د پوهې او زده کړې وسیله ګرځولې ده او د قلم په واسطه یې دا ټول کتابونه منځ ته راوړي دي چې انساني نسلونه ورڅخه په پرله پسې توګه ګټه ترلاسه کوي.

د قلم، لوستلو او لیکلو د ارزښت او درناوي په هکله همدا بس ده چې په قرآن کریم کې یو بشپړ سورت په (القلم) نومول شوی او په دې سورت کې په قلم او هغه څه چې ورباندې لیکل کیږي، قسم یاد شوی. قلم د زده کړې او د علم د خپرولو وسیله ده او د تمدن او پرمختګ په رامنځته کولو کې ډېر ارزښتناک رول لري. رسول الله ﷺ باندې لومړني نازل شوي آیتونه په دې ښه ګواه دي چې اسلام زده کړې، پوهې، لوست او لیک ته څومره ارزښت ورکړی دی!

د مسلمانانو لومړیو نسلونو د همدې حقیقت په درک کولو او د مبارکو قرآني آیتونو او سپیڅلو نبوي احادیثو څخه په الهام اخیستنه د علم او زده کړې لور ته مخه وکړه او په لږه موده کې یې د ستر اسلامي تمدن بنسټ کېښود. د علم او پوهې په بېلابېلو څانګو کې د مسلمانو پوهانو اکتشافات، اختراعات، کتابونه او علمي آثار دومره ارزښتمن او بې ساري وو چې تر اوسه پورې په ټوله نړۍ او په ځانګړي ډول د لوېدیځو هېوادونو په علمي مرکزونو کې تدریس او ګټه ترې اخیستل کیږي.

### په نورو مخلوقاتو باندې د انسان غوره والی

الله تعالی په لومړي پړاو کې خلقت په مطلقه بڼه یاد کړ، ترڅو په دې سره ټول مخلوقات راونغاړي، بیا یې انسان د خپل عجیبه پیدایښت او فطرت له امله خاص او عزتمند وګرځاوه او خپل آیتونه یې پرې نازل کړل.

**لوستل او لیکل د پوهې او زده کړې دوه مهمې وسیلې**

همدارنګه الله ﷻ په دې آیتونو کې لوستل له لیکلو سره یوځای او پیوست بیان کړي دي او فـــــــرمایلي یې دي ﴿ ٱلَّذِى عَلَّمَ بِٱلْقَلَمِ ﴾ یعنې انسان ته یې د قلم په واسطه ښوونه وکړه چې دا د اللهﷻ یو لوی نعمت او د انسانانو ترمنځ د تفاهم وسیله ده. که لیکنه نه وای، نو علوم به له منځه تللي وو او د دین هېڅ نښه به پاتې نه وه، نظم او قانون به شتون نه درلود. همدا لیکنه ده چې علوم او د پخوانیو خلکو پیښې ثبتوي، وګړي او ټولنې د دې په مرسته پرمختګ کوي، مدنیتونه جوړوي، په لیکنې سره د بشریت تاریخ محفوظ پاتې کېږي او وروستني خلک د لومړنیو خلکو په هکله معلومات تر لاسه کوي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

له پورتنیو مبارکو آیتونو څخه لاندینۍ ګټې ترلاسه کولی شو:

- ❖ الله پاک خپل پیغمبر او مسلمانانو ته امر کوي چې قرآن کریم د خپل پالونکي په نامه ولولي.
- ❖ د علم او پوهې مصدر الله تعالی دی او هغه دی چې انسان ته د علم او پوهې د حاصلولو وس او توان ورکوي.
- ❖ لیکنه د علم او پوهې په ساتنه او لیږدونه کې اساسي رول لوبوي او پرته له لیکنې هېڅ علم محفوظه نشي ساتل کیدلی.
- ❖ د اسلام دین د علم دین دی او ستر دلیل یې دا دی: چې د قرآن کریم لومړني آیتونه چې په پیغمبر ﷺ باندې نازل شوي، هغه د علم زده کړې ته دعوت ورکوي.
- ❖ پر انسان د الله ﷻ د رحمت او مهربانۍ نښې دا دي چې هغه ته یې علم ښودلی او له بیسوادۍ څخه یې نجات ورکړی دی.
- ❖ د علم زده کړه او د هر څه لوستل باید د الله ﷻ په نامه او د هغه د رضا د حاصلولو لپاره وي.
- ❖ قلم د الله تعالی نعمت او د بشر په ژوندانه کې د ارزښتناکو اکتشافاتو او اختراعاتو وسیله ده.

❖ لوستل، ليکل او د علم زده کړه يو قرآني اصل، د مسلمانانو ديني دنده او د اسلامي تمدن بنسټ ګڼل کېږي.

❖ د قلم، کتاب او پوهانو درناوی د اسلامي ټولنې له ځانګړتياوو او د مسلمانانو له شرعي وجيبو څخه ګڼل کېږي.

**فعاليت**

زده کوونکي دې په دوو ډلو وويشل شي يوه ډله دې د لوستلو ګټې او بله ډله دې د ليکلو ګټې څرګندې کړي او د انساني پرمختګ په ډګر کې دې د دواړو د ونډې په هکله بحث وکړي.




۱- د (علق) سورت ولې په دې نوم نومول شوی دی.

۲- د (علق) معنا او مفهوم روښانه کړئ؟

۳- په الهي وينا کې د (اقرأ) مخاطب څوک دی؟

۴- د دې آيتونو شان نزول څرنګه دی؟

۵- په دې آيتونو کې کومې لارښوونې نغښتې دي؟

٦- د خلقت په اړه د الهي قدرت له رازونو څخه يو راز له دې آيتونو څخه څرګند کړئ؟

۷- له دې آيتونو څخه څه عبرتونه او درسونه اخيستلای شئ؟

۸- ولې په اسلامي ټولنه کې بايد د قلم او پوهې څښتنان د درناوي وړ وي؟




د لوستل شويو آيتونو په رڼا کې (د تمدنونو په رامنځته کولو کې د قلم، ليک او لوست ونډه) تر سرليک لاندې پنځلس کرښې مقاله وليکئ.

څلورم لوست

# د اخلاص سورت تفسیر

قال تعالی: ﴿ قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَـدٌ ۞ ٱللَّهُ ٱلصَّـمَدُ ۞ لَمۡ يَـلِدۡ وَلَمۡ يُولَدۡ ۞ وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَـدُۢ ﴾ [الإخلاص ١-٤]

**د کلمو معناوې**

أَحَـد: یو دی.

ٱلصَّـمَد: هیڅا ته اړ نه دی، ټول هغه ته اړ دي.

كُفُوًا: مثل– سیال – ساری.

**ژباړه**

**ووایه چې الله ﷻ یو دی. الله ﷻ هیچا ته اړ نه دی. ټول هغه ته اړ دي. نه یې څوک زیږولي دي او نه دی له چا څخه زیږیدلی دی او هېڅوک له ده سره سیال نه دي او ساری نه لري.**

**تفسیر: دا سورت د الله تعالی په پېژندنه کې له موږ سره مرسته کوي او د ده د صفتونو په هکله زموږ معلومات او پوهه زیاتوي.**

**په دې سورت کې الله ﷻ خپل پیغمبرﷺ ته امر کوي چې ووایه: الله ﷻ د ذات او صفتونو له پلوه یو دی. مستغني او بې پروا دی چا ته محتاج او اړ نه دی او څوک د ده لویي او قدرت ته نشي رسیدلای او څوک د ده د حکم او فرمان مقابله نشي کولای. الله ﷻ هغه ذات دی چې بنده گان خپل حاجتونه او ضرورتونه له ده څخه غواړي او د خپلو ستونزو په هکله ده ته رجوع کوي.**

**الله ﷻ هغه ذات دی چې نه یې څوک زیږولي دي او نه دی له چا څخه زیږیدلی دی، د دې الهي صفتونو په پوهیدو سره باید ووایو چې الله تعالی یوازنی بې سیاله او بې ساری ذات دی.**

**په [لَمۡ يَـلِدۡ] جمله کې د زوی او لور موجودیت له الله ﷻ څخه نفي شوی دی. مشرکانو عقیده درلوده چې پرښتې د الله لونې دي او یهودو عزیر عليه السلام د ده زوی گڼلو، نصاراوو به ویل چې عیسی علیه السلام د الله ﷻ زوی دی چې دا ټولې بې بنسټه دعواوې دي.**

**د [وَلَم يُولَدۡ] په جمله کې د الله ﷻ لپاره د پلار شتون نفي او باطل گڼل شوی دی.**

د اخلاص سورت دا اصل هم ثابتوي چې د الله ﷻ له مخلوقاتو څخه هېڅوک له الله ﷻ سره سیالي او برابري نشي کولای او هېڅ شی د الله ﷻ په ذات، صفتونو او کړنو کې له ده سره سیالي نشي کولای. دې وینا له الله تعالی سره د سیال شتون نفې کړ او د عربو مشرکانو وهم او گمان یې باطل اعلان کړ چې د الله ﷻ لپاره په کړنو کې د شریک او سیال قایل وو او پرښتې او بتان یې له الله ﷻ سره شریکول.

**د اخلاص سورت مرتبه او فضیلت**

په یو حدیث کې چې حضرت انس رضي الله عنه روایت کړی دی، پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «قُلْ هُوَ اللَّهُ أَحَدٌ تَعْدِلُ ثُلُثَ الْقُرْآنِ»

یعنې: (د اخلاص سورت د قرآن له دریمې برخې سره مساوي دی) ځکه دا سورت موږ د خپل پروردگار او پالونکي سره اشنا کوي. یعنې توحید راښیي او قرآن کریم په ټولیزه توگه درې مرکزي مضامین لري: توحید، رسالت او معاد (آخرت).

په قرآني آیتونو او نبوي احادیثو کې زیات مطالب موجود دي چې د دې سورت له معناگانو سره ورته والی لري او د دې سورت مفاهیم روښانه کوي.

**یادونه:** ځینې علماء وایي د اخلاص سورت د الله تعالی په حق کې داسې دی، لکه: د کوثر سورت چې د پیغمبرﷺ په شان کې دی – په دې توگه چې مشرکانو د الله په پیغمبرﷺ باندې د زوی نه درلودلو له امله عیب لگاوه چې زوی نه لري او د زوی نه لرل د انسان په حق کې عیب گڼل کېږي – خو ددې پر خلاف د اللهﷻ لپاره د زوی او شریک په لرلو قائل وو حال دا چې د اللهﷻ په حق کې د زوی او شریک لرل عیب او نقص دی، نو اللهﷻ د کوثر په سورت کې له خپل رسول څخه دفاع کوي او ورته داسې فرمایي «إنا أعطیناک الکوثر» یعنې موږ تا ته لوی خیر درکړی او لکه څرنگه چې ستا دښمنان گمان کوي، ته ناقص او ابتر نه یې.

دلته د اخلاص په سورت کې اللهﷻ خپل پیغمبرﷺ ته امر کوي چې ته له اللهﷻ څخه دفاع وکړه او ووایه: ﴿ قُلۡ هُوَ ٱللَّهُ أَحَدٌ ﴾ الله یو دی، تر څو له اللهﷻ څخه د شریک او زوی درلودلو تور هم لرې شي.

**د لوست گټې او لارښوونې**

د اخلاص د مبارک سورت له آیتونو څخه ډېرې گټې حاصلېږي چې ځینو ته یې په لاندې ډول اشاره کوو:

❖ الله ﷻ په ذات، صفتونو او کړنو کې يوازنی ذات دی او هېڅوک ورسره ورته والی نه لري.

❖ الله ﷻ نه څوک زيږولي دي او نه له چا څخه زيږيدلی دی.

❖ الله ﷻ له ټولو مخلوقاتو څخه بې نيازه او مستغني دی او ټول مخلوقات ده ته اړ دي.

❖ د اخلاص په مبارک سورت کې د مشرکانو پر عقيده چې ملايکې يې د الله لوڼې گڼلې، د يهودو پر عقيده چې عزير عليه السلام يې د الله زوی گڼلو او د نصاراوو پر عقيده چې حضرت عيسی عليه السلام يې د الله زوی گڼلو، د بطلان کرښه راښکل شوې ده. همدا راز په دې سورت کې دا هم په روښانه ډول په ډاگه شوې چې د الله تعالی ذات بې سارې، منزه او له هر عيب او نيمگړتيا څخه پاک دی.

❖ د اخلاص سورت ته د توحيد سورت هم وايي، ځکه چې د دې سورت اساسي موضوع د الله تعالی د توحيد اثبات دی.




۱- د لاندې کلمو او جملو معناوې شرح کړئ:

أ. ٱللَّهُ أَحَـدٌ .

ب. ٱلله ٱلصَّـمَدُ.

ج. وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ كُفُوًا أَحَـدُۢ.

۲- د اخلاص سورت فضيلت او مرتبه د يوه نبوي حديث په رڼا کې شرح کړئ.

۳- د اخلاص سورت بنسټيزه موضوع څه ده؟ واضح يې کړئ.

۴- د اخلاص په سورت کې د الله پاک په اړه د کومو باطلو ډلو پر عقايدو رد شوی دی؟




د اخلاص سورت د مقام، مرتبې او گټو په هکله يوه مقاله وليکئ او په خپله مقاله کې په آيتونو او احاديثو استدلال وکړئ.

پنځم لوست

# یوازې الله ﷻ په هر څه واکمن او پیداکوونکی دی

﴿ تَبَارَكَ ٱلَّذِي نَزَّلَ ٱلۡفُرۡقَانَ عَلَىٰ عَبۡدِهِۦ لِيَكُونَ لِلۡعَٰلَمِينَ نَذِيرًا ۝ ٱلَّذِي لَهُۥ مُلۡكُ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ وَلَمۡ يَتَّخِذۡ وَلَدًا وَلَمۡ يَكُن لَّهُۥ شَرِيكٌ فِي ٱلۡمُلۡكِ وَخَلَقَ كُلَّ شَيۡءٍ فَقَدَّرَهُۥ تَقۡدِيرًا ۝ وَٱتَّخَذُواْ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةً لَّا يَخۡلُقُونَ شَيۡـًٔا وَهُمۡ يُخۡلَقُونَ وَلَا يَمۡلِكُونَ لِأَنفُسِهِمۡ ضَرًّا وَلَا نَفۡعًا وَلَا يَمۡلِكُونَ مَوۡتًا وَلَا حَيَوٰةً وَلَا نُشُورًا ﴾ [الفرقان: ۱_۳ ].

**د کلمو او جملو معناوې**

تَبَارَكَ: ډېر برکتناک، د ډېر خیر څښتن، تر ټولو لوړ او پورته دی.

ٱلۡفُرۡقَانَ: قرآن کریم، د حق او باطل ترمنځ توپیر کوونکی.

عَلَىٰ عَبۡدِهِۦ: پر خپل بنده (پر خپل پیغمبرﷺ.)

ٱلۡعَٰلَمِينَ: مخلوقات، انس او جن.

نَذِيرًا: ویروونکی.

فَقَدَّرَهُۥ تَقۡدِيرًا: بیایې اندازه کړ هغه په ځانګړې او بې سارې ډول سره، هرڅه یې بشپړ او ښه پیدا کړل.

نُشُورًا: وروسته له مرګه بیا راژوندې کول، د قیامت ورځ.

**ژباړه**

ډېر برکتناک دی هغه ذات چې پر خپل بنده يې فرقان (قرآن کريم) نازل کړ، ترڅو د ټولو نړيوالو لپاره ويرووونکی وي.

هغه ذات چې د آسمانونو او ځمکې د پاچاهۍ څښتن دی نه يې څوک زوی نيولی او نه ورسره څوک په واکمنۍ کې برخمن دی. هر شی يې پيدا کړی دی، بيا يې اندازه کړی دی هغه په اندازې سره.

او کافرانو له الله ﷻ نه پرته داسې معبودان ونيول چې هېڅ نشي پيدا کولی، بلکې دوی په خپله پيدا کول کېږي او د خپلو ځانونو لپاره هم د څه گټې يا زيان واک نه لري، نه د وژلو وس لري نه د ژوندي کولو او نه مړه شوي بيا را پاڅولی شي.

**تفسير**

د الفرقان مبارک سورت د مکي سورتونو له ډلې څخه دی. د دې سورت اساسي موضوعات د توحيد بيان، د مشرکانو د عقيدو بطلان، پر نېکو اخلاقو ټينگار او له بدو کارونو څخه منع کول دي.

پورتني آيتونه چې د سورت په پيل کې راغلي د پاک الله په توحيد، د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د رسالت په اثبات او د مشرکانو د عقيدو او انگېرنو په ردولو راڅرخي.

**د پېغمبر ﷺ د رسالت ټوليزوالی (تعميم)**

دا مبارک سورت په دې سره پيل شوی چې الله ﷻ باخبره، با برکته او عاليشان ذات دی.

حسي او معنوي زياتوالی، ودې او د خير ډېروالي او دوام ته برکت ويل کېږي. د الله تعالی د خير او برکت له نښو څخه په پيغمبرﷺ باندې د قرآن کريم راليږنه ده، چې د حق او باطل ترمنځ بېلوونکی دی.

د (عبده) په جمله کې د پيغمبر ﷺ لپاره يو ډول تکريم او عزت دی چې الله تعالی هغه د خپل فرمانبردار بنده په نامه ستايلی دی. د قرآن کريم په نورو آيتونو کې هم د رسول اللهﷺ درناوی او تکريم په (عبد) يعنې د الله بنده سره شوی دی، لکه: د الله پاک دا وينا: ﴿سُبْحَانَ الَّذِي أَسْرَى بِعَبْدِهِ لَيْلًا مِنَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ إِلَى الْمَسْجِدِ الْأَقْصَى الَّذِي بَارَكْنَا حَوْلَهُ لِنُرِيَهُ مِنْ آيَاتِنَا إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ﴾ همدارنگه د کهف سورت په لومړي آيت کې هم داسې راغلي دي: ﴿الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي أَنْزَلَ عَلَى عَبْدِهِ الْكِتَابَ وَلَمْ يَجْعَلْ لَهُ عِوَجًا﴾.

د تفسير علما وايي چې په (عبده) يعنې د الله بنده سره د رسول الله صلی الله عليه وسلم يادونه دوه ارزښتناک مفاهيم راپه ګوته کوي:

۱- حضرت محمدﷺ د الله تعالی مخلوق او بنده دی او الله پاک هغه د رسالت او نبوت د مقام لپاره غوره کړی. دلته د نصاراوو د عقيدې بطلان ته اشاره ده چې دوی د الله تعالی بنده او مخلوق حضرت عيسیعليه السلام د خدای په توګه مني، په داسې حال کې چې بنده او مخلوق هېڅکله هم د عبادت وړ نه دی.

۲- په دې تعبير کې د رسول اللهﷺ لپاره يو ډول درناوی او عزت دی، ځکه چې الله پاک هغه ته د خپل بنده خطاب کړی دی[1].

الله تعالی پر خپل بنده حضرت محمدﷺ باندې قرآن کريم نازل کړ، چې د ټولې نړۍ او نړيوالو لپاره پيغمبر واوسي او هغه کسان چې په اللهﷻ ايمان نه راوړي او د پيغمبرﷺ پيروي نه کوي، د جهنم له سخت عذابه ځخه وويروي.

دا خبره د اسلام د پيغمبر ﷺ د رسالت پر تعميم چې د انس او جن په شمول د ټولو عالميانو لپاره دی، ښکاره او ځرګند دليل دی.

## په کايناتو کې د الله تعالی د وحدانيت دلايل

الله تعالی د پاچاهۍ او ټولې هستۍ ښتن او خاوند دی او په آسمانونو او ځمکو کې د هر شي متصرف دی. الله تعالی بی نيازه دی د مخلوقاتو د چارو په تدبير او اداره کې د هيچا مرستې او کمک ته اړتيا نه لري.

همدارنګه الله تعالی په ځمکو او آسمانونو کې د ټولو شيانو خالق او پيدا کوونکی دی او ځه شی چې له اللهﷻ نه پرته دي هغه ټول مخلوق دی او مخلوق ضعيف او عاجزه وي چې قوي خالق او پيداکوونکي ته ضرورت لري.

الله تعالی د هر شي پيدايښت په ښه او ښايسته بڼه ترسره کړی، هر شي ته يې ښکلی شکل او صورت ورښلی او د هغه لپاره يې هغه ځه برابر کړي دي چې اړتيا ورته لري، ترڅو خپله وظيفه او دنده په سمه توګه سرته ورسوي.

---

[1] - تفسير ابی سعود

مشرکانو د الله ﷻ په وحدانیت ایمان را نه وړ او په وحدانیت سره یې د الله تعالی عبادت ونه کړ، بلکې له هغه سره یې شریک او سیال ونیول، حال دا چې پرته له الله څخه بل معبود نشته لکه: څرنګه چې الله تعالی په قرآن کریم کې فرمايي:

﴿ وَٱتَّخَذُواْ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةً لَّا يَخۡلُقُونَ شَيۡـًٔا وَهُمۡ يُخۡلَقُونَ وَلَا يَمۡلِكُونَ لِأَنفُسِهِمۡ ضَرًّا وَلَا نَفۡعًا وَلَا يَمۡلِكُونَ مَوۡتًا وَلَا حَيَوٰةً وَلَا نُشُورًا ﴾.

دا معبودان عاجز او اړ مخلوقات دي، څه شی پیدا کولی نشي او نه ګټه او زیان رسولی شي، ځکه ګټه او زیان یوازې د الله تعالی له لوري دی او دا له ځانه جوړ کړي معبودان د چا په مرګ او ژوند قادر نه دي، بلکې دوی په خپله مري او څرنګه چې د الله تعالی خوښه وي هماغسې یې له منځه وړي.

همدا شان دغه معبودان د دې توان نه لري چې د قیامت په ورځ څوک ژوندي کړي، ځکه یوازې الله ﷻ دی چې ژوندي کول او مړه کول کوي، نو یوازې همدا ذات دی چې د عبادت وړتیا لري.

کله چې دغه باطله معبودان دارنګه عاجزه او بیوزلي وي، نو هېڅکله د دې لیاقت او وړتیا نه لري چې د معبودانو په توګه ونیول شي، بلکې خدايي او معبودیت یوازې هغه واحد الله ﷻ لره دی چې پرته له هغه بل معبود نشته.

## د لوست ګټې او لارښوونې

له یادو شویو مبارکو آیتونو څخه لاندې ګټې او لارښوونې ترلاسه کولی شو:

❖ د قرآن کریم له نومونو څخه یو نوم فرقان دی، ځکه قرآن کریم حق او باطل، خیر او شر سره جلا کړي دي.

❖ الله ﷻ قرآن کریم پر خپل بنده او پیغمبر ﷺ باندې نازل کړی دی.

❖ الله تعالی خپل پیغمبر حضرت محمد ﷺ د خاتم النبیین په توګه د قیامت تر ورځې پورې د انسانانو او پېریانو لپاره رالیږلی دی.

❖ هغه ذات چې د آسمانونو او ځمکو پیداکوونکی دی هغه اولاد او سیال نه لري.

❖ یوازې الله جل جلاله پیدا کوونکی او جوړوونکی دی، الله جل جلاله هرڅه پیدا کړي او د هغو پیدایښت یې بشپړ او مناسب ګرځولی دی.

❖ مشرکانو د یوه، قادر، خالق، مالک خدای سره په الوهیت کې داسې شیان شریک کړي دي چې نه یوازې چاته ګټه او زیان نشي رسولای، بلکې بې حسه بې حرکته موجودات دي چې نورو ته اړ او محتاج دي او دغسې عقیده د هوښیارانو نه بلکې د ناپوهانو تګلاره ده.

❖ باطل معبودان هیڅکله د څه شي وس او قدرت نه لري، ځکه ټولې چارې د الله جل جلاله په قدرت کې دي.




۱- د فرقان سورت ولې په دې نوم نومول شوی دی؟

۲- ولې قرآن د فرقان په نوم یاد شوی؟

۳- د دې لوست له لومړي آیت څخه د حضرت محمد ﷺ د رسالت په عمومیت دلیل راوړئ؟

۴- د الله جل جلاله د دې وینا ﴿ وَخَلَقَ كُلَّ شَىْءٍ فَقَدَّرَهُۥ تَقْدِيرًا ﴾ توضیح وکړئ؟

۵- د دې لوست له دریم آیت څخه هغه پنځه شیان راوباسئ چې باطل خدایان د هغو له درلودلو عاجز او بې وسې دي؟

۶- ولې د درناوي او تشریف په ځای کې رسول الله ﷺ د (عبده) په نامه سره یادېږي؟




څه چې مو په دې لوست کې لوستي دي د هغه لنډیز او مهم ټکي په لسو کرښو کې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# د الله تعالی غوره نومونه

قال تعالی: ﴿ هُوَ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ عَـٰلِمُ ٱلْغَيْبِ وَٱلشَّهَـٰدَةِ هُوَ ٱلرَّحْمَـٰنُ ٱلرَّحِيمُ ۝ هُوَ ٱللَّهُ ٱلَّذِى لَآ إِلَـٰهَ إِلَّا هُوَ ٱلْمَلِكُ ٱلْقُدُّوسُ ٱلسَّلَـٰمُ ٱلْمُؤْمِنُ ٱلْمُهَيْمِنُ ٱلْعَزِيزُ ٱلْجَبَّارُ ٱلْمُتَكَبِّرُ سُبْحَـٰنَ ٱللَّهِ عَمَّا يُشْرِكُونَ ۝ هُوَ ٱللَّهُ ٱلْخَـٰلِقُ ٱلْبَارِئُ ٱلْمُصَوِّرُ لَهُ ٱلْأَسْمَآءُ ٱلْحُسْنَىٰ يُسَبِّحُ لَهُۥ مَا فِى ٱلسَّمَـٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَهُوَ ٱلْعَزِيزُ ٱلْحَكِيمُ ﴾ [الحشر:٢٢-٢٤]

**د کلمو معنا**

ٱلْغَيْبِ: په پټه (هغه چې زموږ د احساس او درک څخه پټ وي، لکه: جنت، دوزخ، ملايکې او داسې نور... ).

ٱلشَّهَـٰدَةِ: په ښکاره (هغه چې د ليدلو او درک کولو وړ وي لکه غرونه، ستوري او نور...).

ٱلْمَلِكُ: د هر شي مالک او متصرف.

ٱلْقُدُّوسُ: پاک او سپېڅلی.

ٱلْمُؤْمِنُ: تصديق کوونکی، امان ورکوونکی.

ٱلْمُهَيْمِنُ: د هر شي څارونکی او ساتونکی.

ٱلْعَزِيزُ: قوي او غالب.

ٱلۡجَبَّارُ: لوی او قوي چې څوک پرې برلاسی کیدای نشي.

ٱلۡمُتَكَبِّرُۚ: لويي کوونکی.

ٱلۡبَارِئُ: د موجوداتو نوی پیداکوونکی.

ٱلۡمُصَوِّرُۖ: صورت جوړونکی (په مناسبې بڼې سره د ټولو شيانو ترکيبوونکی).

ٱلۡأَسۡمَآءُ ٱلۡحُسۡنَىٰۚ: ښه او غوره نومونه.

**ژباړه**

**الله ﷻ هغه ذات دی چې له هغه پرته بل هېڅ معبود برحق نشته. عالم دی پر غيبو او ښکاروو باندې، هماغه (الله)ﷻ ډېر مهربان او زيات بښونکی دی.**

**الله ﷻ هغه ذات دی چې له هغه پرته کوم معبود برحق نشته، هغه پاچا دی، ډېر پاک دی (له ټولو عيبونو څخه) سالم دی، امان ورکوونکی دی، ساتونکی دی، په ټولو برلاسی دی، په زور د خپل حکم نافذوونکی او د لويۍ څښتن دی، پاک دی الله له هغو شيانو چې (مشرکان يې) ورسره شريکوي.**

**الله ﷻ هغه ذات دی چې پيدا کوونکی (له نشت نه وجود ته) را ويستونکی، شکل او صورت ورکوونکی دی. د هغه لپاره ډېر غوره نومونه دي. هرڅه چې په آسمانونو او ځمکو کې دي هغه ټول په پاکۍ سره د الله ﷻ ستاينه کوي او هغه برلاسی او حکمت والا دی.**

**تفسير**

**د اللهﷻ غوره نومونه**

**په دې دروو آيتونو کې د الله تعالی څه نومونه ياد شوي دي، په داسې حال کې چې په بل هېڅ کوم سورت کې د الله تعالی نومونه داسې پرله پسې نه دي ذکر شوي. د دې سورت په دريو آيتونو کې د الله پاک له غوره نومونو څخه اووه لس نومونه بيان شوي دي.**

**دا مبارک آيتونه د اللهﷻ د وحدانيت په ټينګار، يعنې د ﴿ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا ٱللَّهُ ﴾ په شعار سره پيل شوي دي او په تاکيد يې فرمايلي دي چې الله تعالی په غايبو، حاضرو، ښکاره او پټو پوهېږي.**

الله ﷻ ښښونکی او ډېر مهربانه دی. د الله ﷻ رحمت زيات او تل تر تله دی او ټولو شيانو ته شامل دی، الله ﷻ واحد او يوازې دی.

بيا مبارکو آيتونو د الله ﷻ يو شمير غوره نومونه د اصل توحيد سره پيوست کړي او فرمايي: الله ﷻ مالک او پاچا دی له ده پرته بل څوک د ملکيت او پاچاهۍ څښتن نشته، الله ﷻ له هر عيب څخه پاک او له هرې نيمګړتيا څخه چې له ده سره مناسب نه وي، خالي دی.

مفسرينو ويلي دي چې د (ملک) له نوم څخه وروسته د (قدوس) لفظ راوړل، دېته اشاره ده چې که څه هم الله تعالی مالک، پاچا او د ټولو شيانو متصرف دی، خو د الله ﷻ تصرف د ځمکې پرمخ د مغرورو او ظالمو پاچاهانو د تصرف په شان نه دی، بلکې د الله ﷻ تصرف او ملکيت په خپله پاچاهۍ او مخلوقاتو کې له هر ډول ظلم او عيب څخه پاک او خالي دی.

### لويي او عظمت د الله ﷻ ځانګړتيا ده

الله تعالی خپلو دوستانو ته سلامتي ورپه برخه کوي، الله ﷻ د خپلو پيغمبرانو تصديق کوونکی او امن ورکوونکی دی.

الله تعالی برلاسی او د شان او شوکت او دبدبې او لويۍ خاوند دی. هغه څه چې د الله ﷻ د جلال او عظمت سره مناسب نه وي له هغه څخه پاک دی.

د الله تعالی دوه صفتونه: (جبار او متکبر) د الله ﷻ له شان سره مناسبه مدح او ستاينه ده، خو د مخلوقاتو لپاره بد او ناوړه صفتونه ګڼل کېږي.

نبی کريم ﷺ په قدسي حديث کې د خپل پالونکي څخه روايت کړی چې الله ﷻ فرمايلي دي: "الْكِبْرِيَاءُ رِدَائِي وَالْعَظَمَةُ إِزَارِي فَمَنْ نَازَعَنِي وَاحِدًا مِنْهُمَا أَلْقَيْتُهُ فِي النَّارِ" يعنې: کبريا زما څادر او لويي زما پرتوګ دی، نو هرڅوک چې په يو له دې دوو صفتونو کې زما سره سيالي کوي، نو هغه به د دوزخ اور ته واچوم.

الله تعالی داسې خالق او پيداکوونکی دی چې ټول کاينات او هستي يې له نشت څخه پيداکړې دي، الله تعالی ټولو شيانو ته صورت او شکل ورکړی او ټول مخلوقات يې په يوه خاص شکل او هيأت سره پيداکړي دي. د الله تعالی لپاره غوره نومونه دي چې په هماغو سره ستايل شوی دی. دا سورت، لکه: څنګه چې د الله ﷻ په حمد او ستاينه پيل شوی همدارنګه د الله ﷻ په حمد او ستاينه پای ته رسېدلی دی. د ځمکو او آسمانونو مخلوقات د الله پاک ستاينه کوي او الله ﷻ ډېر لوی او د حکمت څښتن دی.

**د انسان پر ژوند باندې د الله تعالی د غوره نومونو اغېز**

أسماء الله الحسنى یا د الله تعالی نېک نومونه د الله پاک د پېژندو غوره وسیله ده، انسانان په دنیا کې د الله تعالی د ذات د لیدلو توان نه لري، نو ځکه د الله جل جلاله د صفاتو د پېژندلو یوازینۍ او سمه لاره د قرآن کریم هغه آیتونه او د پیغمبر علیه السلام هغه صحیح احادیث دي چې په هغو کې د الله تعالی صفات ذکر شوي دي. له همدې امله ده چې د الله تعالی صفات او اسماء توقیفي دي، یعنې د قرآن او سنتو په نصوصو پورې متوقف دي او د اجتهاد او اټکل پر بنسټ په هغو کې زیاتی او کمی جواز نه لري.

د اسماء الله الحسنی زده کړه او په هغو کې فکر کول د انسان پر ژوند ډېرې ګټورې اغېزې لري چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

۱- د الله تعالی د نومونو په معنا او مفهوم پوهېدل د الله تعالی د پاک ذات په هکله زموږ پوهه او معرفت زیاتوي چې دا کار الله تعالی ته د انسان د تقرب او نژدېوالي او د هغه په زړه کې د الله ﷻ د مینې او محبت د زیاتېدو او د الله تعالی له قهر څخه د وېرې لامل ګرځي چې د دې ټولو اغېزې د انسان په وګړیز او ټولنیز ژوند کې د نېکو اعمالو د زیاتېدو او د ناوړه اعمالو او ګناهونو څخه د ځان ژغورلو په بڼه څرګندېږي.

۲- الله تعالی په بل آیت کې فرمایلي دي: ﴿ولله الأسماء الحسنى فادعوه بها﴾ [الأعراف: ۱۸۰] ژباړه: الله لره غوره نومونه دي، هغه په هماغه غوره نومونو سره وبلئ. یعنې کله چې له الله تعالی څخه څه شی غواړئ د خپل حاجت او اړتیا سره په مناسب نوم دعا وکړئ، د بېلګې په ډول: ای رحمان ذاته! زما ګناهونه راوبښه! زما رازقه خدایه! زما رزق پراخه کړه! او داسې نور.

۳- له رسول اللهﷺ څخه په صحیح حدیث کې نقل شوی چې فرمایي: «إن لله تسعة و تسعين اسما، مائة إلا واحدا، من أحصاها دخل الجنة...» [1]

ژباړه: الله پاک نهه نوي نومونه لري، هر چا چې هغه په یادو زده کړل، پر معنا یې ځان پوه کړ او د هغو په مقتضا یې عمل وکړ، الله جل جلاله به یې جنت ته داخل کړي.

**فعالیت:** هر زده کوونکی دې د الله ﷻ هغه نومونه چې په دې سورت کې ذکر شوي نه دي، وپلټي او بیا دې په خپله کتابچه کې ولیکي.

[1] - حديث متفق عليه، صحيح البخارى۳/۲۵۹ ، و صحيح مسلم حديث ۲۶۷۷.

### د لوست گټې او لارښوونې

د دې لوست د مبارکو آیتونو ځینې گټې دا دي:

❖ دا مبارک آیتونه له سترو قرآني آیتونو څخه دي چې الله تعالی او د هغه صفتونه یې موږ ته معرفي کړي دي.

❖ دې مبارکو آیتونو د الله ﷻ غوره نومونه او پر هغو باندې یې د ا یمان او یقین اهمیت بیان کړی دی.

❖ پر موږ لازم دي چې الله ﷻ په اسماوو او صفاتو سره وپیژنو او په هماغو نومونو او صفاتو له الله ﷻ څخه غوښتنه وکړو.

❖ د الله تعالی د نومونو او صفتونو په معنا پوهیدل، په هغو کې فکر او سوچ کول او د هغو له غوښتنې سره سم عمل کول د انسان پر فردي او ټولنیز ژوند باندې سمه او نیغه اغیزه لري او د دې لامل کیږي چې ټولنه د ښېگڼې او بریا په لور گامونه پورته کړي.




۱-د الله ﷻ له غوره نومونو څخه چې د الحشر په سورت کې یاد شوي دي کوم لس نومونه بیان شوي دي.

۲-په مخلوقاتو کې د الله ﷻ پاچاهي او د ځمکې د نورو پاچاهانو ترمنځ توپیر بیان کړئ؟

۳- د جبار او متکبر د صفتونو نسبت ورکول الله ﷻ ته او مخلوق ته، څه توپیر لري؟

۴- څرنگه کولای شو د الله پاک د نېکو نومونو او صفتونو څخه د اغېزمنتیا په ترڅ کې په خپل وگړیز او ټولنیز ژوند کې رغنده بدلون راولو؟




د (اسماء الله الحسنی) د یادولو، ثواب او د انسان په ژوند باندې د هغو د اغېزې په هکله یوه وړه مقاله ولیکئ او په دې اړه په نبوي احادیثو استدلال وکړئ.

اووم لوست:

## انسان عبث او بې فايدې نه دی پيدا شوی

﴿أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَاكُمْ عَبَثًا وَأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ ۞ فَتَعَالَى اللَّهُ الْمَلِكُ الْحَقُّ ۖ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْكَرِيمِ ۞ وَمَن يَدْعُ مَعَ اللَّهِ إِلَٰهًا آخَرَ لَا بُرْهَانَ لَهُ بِهِ فَإِنَّمَا حِسَابُهُ عِندَ رَبِّهِ ۚ إِنَّهُ لَا يُفْلِحُ الْكَافِرُونَ ۞ وَقُل رَّبِّ اغْفِرْ وَارْحَمْ وَأَنتَ خَيْرُ الرَّاحِمِينَ﴾ [المؤمنون: ۱۱۵-۱۱۸]

**د کلمو او جملو معناوې**

عَبَثًا: بابيزه، بې ګټې.

فَتَعَالَى اللَّهُ: الله پاک له هر ډول نقص او نيمګړتيا څخه لوړ او پاک دی.

الْمَلِكُ الْحَقُّ: رښتينی او حق واکمن پاچا دی.

يَدْعُ: رابولي.

بُرْهَانَ: دليل او حجت.

**ژباړه**

آيا تاسې انګيرلې وه چې موږ تاسې بابيزه او عبث پيداکړي ياست او تاسې زموږ لور ته بيرته نه راګرځول کيږئ، نو لوړ او پورته دی الله ﷻ رښتينی (حقيقي) پاچا، له هغه پرته بل هيڅ کوم معبود نشته، د عزتمن عرش څښتن دی. او څوک چې له الله ﷻ سره کوم بل معبود چې هيڅ دليل هم پرې نه لري، راوبلي، نو د هغه حساب د هغه له رب سره دی. بيشکه کافران هيڅ کله بری نه مومي. ای محمده! ووايه زما ربه ببښنه وکړه او رحم وکړه او ته تر ټولو رحم کوونکو ښه رحيم يې.

**تفسير**

الله تعالی کافرانو ته خطاب کوي او فرمايي: آيا گمان کوئ چې ما تاسو بابيزه او عبث پيداکړي ياست؟ نه داسې نه ده بلکې موږ تاسې د عبادت، تهذيب، زده کړې او الهي اوامرو د سرته رسولو لپاره پيداکړي ياست او آيا گمان کوئ چې وروسته له مرگه دويم ځلې به د حساب او بدلې لپاره راپورته نشئ.

لوړ او پورته دی الله تعالی له دې څخه چې يو شی پرته له حکمته څخه پيدا کړي. الله تعالی يو دی او پرته له هغه بل هېڅ معبود او خالق نشته او هغه د ستر عرش څښتن دی.

په مبارک آيت کې عرش د کريم (عزتمن) په صفت موصوف شوی دی، ځکه چې عرش د عالميانو پروردگار او (اکرم الاکرمين) ذات ته منسوب دی. بيا الله تعالی هغه څوک چې ده ته د زوی يا شريک او سيال په لرلو قايل دي، تهديدوي او فرمايي: هر هغه څوک چې له الله پرته بل معبود رابلي او په خپل دې کار باندې کوم حجت او دليل هم نه لري، نو بيشکه د هغه حساب او کتاب د هغه له رب سره دی او دا ډول خلک هېڅکله هم بريمن کېدلای نشي.

دا د هغو کسانو لپاره ډېر لوی تهديد دی چې له الله تعالی سره شريک نيسي. داسې کسان به هېڅکله کامياب نشي، بلکې ناکام به وي او څوک چې په آخرت کې ناکام شي، نو د هغو لپاره سخت عذاب دی.

**د کافرانو ناکامي او د مؤمنانو کاميابي**

پورتني مبارک آيتونه چې د المؤمنون د سورت آخرني آيتونه دي په ټينگه د کافرانو په ناکامۍ او د مؤمنانو په کاميابۍ او خلاصون دلالت کوي چې د سورت په پيل کې هم تاکيد پرې شوی دی، تر څو د دواړو ډلو ترمنځ تفاوت او توپير روښانه کړي.

په دې ترتيب الله تعالی خپل پيغمبر او وروسته بيا د هغه امت ته ښوونه کوي چې د مغفرت او رحمت غوښتنې لپاره يوازې همده ته رجوع وکړئ، ځکه الله تعالی ډېر ښه بښونکی او ډېر زيات رحم کوونکی دی.

بخاري، مسلم، ترمذي او ابن حبان له حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه څخه روايت کړی چې هغه رسول الله ﷺ ته وويل: ای د الله رسوله! ماته داسې دعا راوښيه چې په خپل لمانځه کې يې وايم، نو رسول الله ﷺ ورته وويل: وايه: «اللهم إني ظلمت نفسي ظلماً كثيراً، و إنه لا يغفر الذنوب الا أنت، فاغفر لي مغفرةً من عندك، و ارحمني، إنك أنت الغفور الرحيم».

**ژباړه:** ای الله! ما پر خپل نفس ډېر زيات ظلم کړی دی او يقيناً پرته له تا بل څوک د گناهونو بښونکی نشته نو ماته ښښنه وکړه او پر ما رحم وکړه همدا ته بښونکی مهربانه يې.

**قرآن کريم شفا ده**

مفسرينو فرمايلي دي چې دا دوه آخري آيتونه د شفا آيتونه دي. ابن ابي حاتم له عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت کړی چې عبدالله بن مسعود رضي الله عنه په يو مريض سړی تېرېده او د هغه په غوږ کې يې د ﴿أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنَـٰكُمْ عَبَثًا... ﴾ آيتونه د سورت تر پايه ولوستل، نو هغه مريض شفا وموندله، ما دا خبره د الله ﷻ پېغمبر ته ياده کړه، پېغمبرﷺ عبدالله بن مسعود ته وفرمايل: (بماذا قراءت في أذنه؟) د هغه سړي په غوږ کې دې څه ولوستل؟ هغه د الله ﷻ پېغمبر ته موضوع بيان کړه، د الله ﷻ پېغمبر وفرمايل: (والذي نفسي بيده، لو ان رجلاً موقناً قرأها علي جبل لزال) قسم په هغه ذات چې زما نفس د هغه په قبضه کې دی که کوم شخص په يقين سره دا آيتونه پر يوه غره باندې ولولي، نو غر به خامخا له منځه ولاړ شي.

هغه څه چې دلته د يادونې وړ او مهم دي، د لوستونکي ايمان، يقين او د زړه صفايي ده او په قرآن کريم سره د تداوۍ او علاج په اړه د ناروغ استعداد او باور لرل دي، يعنې دا چې ناروغ هم د قرآن کريم په وسيله د معالجې او تداوۍ لپاره تياري او آمادګي ولري.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

له پورتنيو آيتونو څخه چې کومې ګټې ترلاسه کېږي په لاندې ډول دي:

❖ د الله ﷻ بندګان او مخلوقات په دنيوي ژوندانه کې ډېر لوړ او لوی مسؤوليت او وظيفه لري چې هغه د عبوديت څرګندونه او د الهي قانون او نظام په سيوري کې ژوند کول دي، الله پاک په دې اړه فرمايي: ﴿ وَمَا خَلَقْتُ ٱلْجِنَّ وَٱلْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴾ ژباړه: ما انسانان او پېريان يوازې د خپل عبادت لپاره پيدا کړي دي.

مفسرينو د عبادت تعريف داسې کړی: (کل ما يحبه الله من الأقوال و الأفعال) يعنې هر هغه وينا او کړنه چې الله پاک يې خوښوي او پر هغې راضي کېږي عبادت دی. پر دې بنسټ ويلای شو چې د عبادت دايره ډېره پراخه ده او ټولو نېکو اعمالو ته داخلېږي، او يوازې د اسلام د مشهورو ارکانو، لکه: لمونځ، روژه، زکات اوحج نوم نه دی.

پر مسلمانانو لازم دي چې خپل ټول ژوند د الله تعالی په عبادت يعنې د هغه د قانون او نظام په پيروۍ کې تېر کړي او مرګ يې هم د هغه په لار کې وي. همدا مطلب د قرآن کريم په بل

آیت کې په خورا روښانه ډول داسې څرګند شوی دی: ﴿ قل إن صلاتي ونسكي و محياي ومماتي لله رب العالمين ..﴾ ژباړه: ووايه ای پیغمبره! بېشکه زما لمونځ، زما قرباني، زما ژوند او زما مرګ د کایناتو د رب لپاره دی.

امام ابو عبدالله بن علي ترمذي ويلي دي: الله تعالی مخلوقات د خپلو بندګانو په حیث پیدا کړي دي چې د ده عبادت وکړي او دوی ته د عبادت په مقابل کې بدله ورکړي او یا د عبادت په پرېښودلو دوی مجازات کړي، نو کله چې انسانان د الله ﷻ عبادت وکړي، نو دوی د آزادو او با کرامته بندګانو په توګه د دنیا له غلامۍ څخه آزاد دي او د آخرت له امن څخه په ډک کور کې به پاچاهان وي، خو که د الله تعالی له بنده ګۍ او غلامۍ څخه سرغړونه وکړي، نو دوی به دنیا کې تښتېدونکي، سرکشه او بدخویه غلامان وي او سبا (د قیامت په ورځ) به د زنداني دښمنانو په څېر د اور په طبقو کې راځوړند وي.

❖ پرته له شکه دا به د انسان تنګ نظري، جهالت او بې عقلي وي که چېرې د ماده پرستو په څېر ګومان وکړي چې همدا د دنیا کور دی او الله ﷻ او د آخرت کور ته به یې ورګرځېدل نه وي، ترڅو هلته انسانانو ته د هغوی د کړو وړو مطابق بدله ورکړل شي.

❖ هغه کسان چې له الله سره شریک نیسي او په دې کار کې هېڅ ډول دلیل او حجت نه لري، نو دوی د عذاب مستحق دي.




د قرآني آیتونو څخه د لاندېنیو موضوعاتو لپاره دلیل راوړئ:

۱. الله تعالی مخلوقات عبث او بابېزه نه دي پیدا کړي.
۲. له پروردګار سره د نسبت له امله، عرش د کریم په صفت ستایل شوی دی.
۳. د رحمت او مغفرت لپاره د دعا مستحب والی.
۴. قرآن کریم شفا ورکوونکی دی په دې هکله نبوي حدیث بیان کړئ؟
۵. انسان باید د ژوند په ټولو اړخونو کې د الهي قانون او نظام تابع وي.




(څرنګه یو هدفمند او مسؤولیت لرونکی ژوند درلودلای شو؟) تر دې سرلیک لاندې یوه مقاله ولیکئ چې له شلو کرښو څخه کمه نه وي.

# انسان د الهي نعمتونو په سيوري کې

﴿ ٱللَّهُ ٱلَّذِى خَلَقَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضَ وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجَ بِهِۦ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ۖ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلْفُلْكَ لِتَجْرِىَ فِى ٱلْبَحْرِ بِأَمْرِهِۦ ۖ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلْأَنْهَٰرَ ۞ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلشَّمْسَ وَٱلْقَمَرَ دَآئِبَيْنِ ۖ وَسَخَّرَ لَكُمُ ٱلَّيْلَ وَٱلنَّهَارَ ۞ وَءَاتَىٰكُم مِّن كُلِّ مَا سَأَلْتُمُوهُ ۚ وَإِن تَعُدُّوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ لَا تُحْصُوهَآ ۗ إِنَّ ٱلْإِنسَٰنَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ ﴾ [ابراهيم :۳۲-۳٤]

**د کلمو او جملو معناوې**

سَخَّرَ: تابع يې کړل، ايل يې کړل.

دَآئِبَيْنِ: له عادت او قانون سره سم چلېدونکي. تل په يو شان روان.

لَا تُحْصُوهَآ: هغه نشئ شمېرلی؟

**ژباړه**

الله ﷻ هغه ذات دی چې آسمانونه او ځمکې يې پيدا کړې دي او له آسمانه يې اوبه راښکته کړي دي. بيا يې د هغو په وسيله ستاسې د خوراک لپاره راز راز مېوې پيداکړې او بېړۍ يې ستاسې لپاره تابع کړي چې په سمندر کې د الله ﷻ په حکم روانې شي او سيندونه يې هم ستاسې په واک کې درکړل لمر او سپوږمۍ يې ستاسې لپاره تابع (ګټور) کړي دي چې تل په يو شان روان دي او شپه او ورځ يې ستاسې لپاره په کار واچوله او ټول هغه څه يې تاسې ته درکړل چې تاسې غوښتل، که تاسې وغواړئ چې د الله ﷻ نعمتونه وشميرئ، نو شميرلی يې نه شئ. حقيقت دا دی چې انسان ډېر بې انصافه او ناشکره دی.

**تفسير**

**د الهي نعمتونو نښې**

الله تعالی په دې آیتونو کې خپل نعمتونه پر مخلوقاتو څرګند کړي دي، د خپل وجود او قدرت دلایلو ته اشاره کوي او دا نعمتونه انسان ته ورپېژني.

الله ﷻ آسمانونه او ځمکې له نشت څخه پیدا کړل او د آسمانونو او ځمکو په پیدایښت کې یې د خپل عظمت د قدرت دلایل او نښې څرګندې کړې.

الله تعالی له وریځو څخه بارانونه نازلوي او د هغو په واسطه ډول ډول نباتات له مختلفو رنګونو او خوندونو او ډول ډول ګټو سره راشنه کوي، ترڅو انسانان ورڅخه روزي لاس ته راوړي او په مختلفو طریقو ورڅخه ګټه واخلي.

الله تعالی ستاسې لپاره بیړۍ تابع کړي دي، ترڅو د الله ﷻ په امر په بحر کې حرکت وکړي. په دې معنا چې د کښتۍ جوړېدنه یې تاسوته دروښوده او د هغه کارول یې ستاسو لپاره آسانه کړل او بادونه یې راولېږل چې د الله ﷻ په امر او توفیق د خپل مسیر په لور حرکت وکړي.

الله تعالی هغه ذات دی چې سیندونه یې په ځمکه کې جاري کړي، ترڅو له اوبو څخه یې د څښلو، ځمکو خړوبولو او د نورو اړتیاوو د پوره کولو لپاره ګټه واخلئ.

د دې لوست مبارک آیت د (الله ﷻ) په لفظ پیل شوی چې دا قرآني اسلوب او طریقه د بې نیازه ذات پر وړاندې، په زړونو کې د ویرې او ډار احساس راویښوي او د مشرکانو پام پر الله تعالی باندې د ایمان وجوب ته را اړوي.

**د لمر او سپوږمۍ حرکت**

دا آیتونه موږ د الله ﷻ معرفت او پیژندنې ته متوجه کوي چې الله تعالی هغه ذات دی چې لمر او سپوږمۍ یې د هغو د حرکت په دوران کې، انسانانو ته د ګټې رسولو او د ځمکې پر مخ د ژوند کولو لپاره مسخر کړي او په خدمت یې لګیا کړي دي. همدارنګه شپه او ورځ یې په خپل پرله پسې تګ او راتګ او د دندو په ترسره کولو کې زموږ لپاره مسخر کړي دي، ترڅو په ورځ کې د الله ﷻ له فضل او برکت څخه روزي وغواړو او د خپل ژوندانه ګټې او ضرورتونه ترلاسه کړو او د شپې له لوري خوب او استراحت وکړو او بېرته خپل قوت حاصل کړو، لکه: څرنګه چې الله تعالی فرمايلي دي:

﴿ وَجَعَلْنَا ٱلَّيْلَ لِبَاسًا ۝ وَجَعَلْنَا ٱلنَّهَارَ مَعَاشًا ﴾ [النبا: ١٠- ١١] يعني: شپه مو لباس او پرده گرځولې ده او ورځ مو د ژوندانه او کار وخت گرځولې ده.

او همدارنگه الله تعالى فرمايلي دي: ﴿ وَءَاتَىٰكُم مِّن كُلِّ مَا سَأَلْتُمُوهُ ۚ وَإِن تَعُدُّوا۟ نِعْمَتَ ٱللَّهِ لَا تُحْصُوهَآ ۗ إِنَّ ٱلْإِنسَـٰنَ لَظَلُومٌ كَفَّارٌ ﴾.

ژباړه: او الله ټول هغه څه تاسې ته درکړل چې تاسې ورڅخه وغوښتل، که تاسې وغواړئ چې د الله ﷻ نعمتونه وشمېرئ، نو شمېرلی يې نشئ. حقيقت دادی چې انسان ډېر بې انصافه او ناشکره دی.

**فعاليت**

زده کوونکي دې د شپې او ورځې او د سپوږمۍ او لمر د دوران د گټو په هکله د څېړنې په ترڅ کې خپل معلومات وړاندې کړي.

**د الله ﷻ نه تماميدونکي نعمتونه او د انسان ناشکري**

اللهﷻ په خپل فضل او کرم انسان ته هغه څه وربښلي چې هغه ورته د ژوندانه په چارو کې اړتيا لري او له الله ﷻ څخه يې غوښتي وي او هغه څه چې يې نه دي غوښتي هغه يې هم ورکړي دي، ځکه الله تعالى په هغه څه چې د انسان په خير وي ښه خبر دی. د الله نعمتونه بې شمېره دي،که چېرې وغواړئ چې د اللهﷻ نعمتونه وشمېرئ او اندازه يې معلومه کړئ، نو هېڅکله دا کار نشئ کولای، خو انسان پر خپل ځان ظلم کوي او د خپل پروردگار د نعمتونو شکر نه اداء کوي او احترام يې نه ساتي، بلکې دغه نعمتونه په گناهونو کې استعمالوي.

**د لوست گټې او لارښوونې**

په پورتنيو آيتونو کې ډېرې گټې نغښتې دي چې په لنډه توگه بيانېږي:

❖ الله تعالى له خپلو کړنو سره خپل بنده گان آشنا کوي او خپل نعمتونه هغوی ته وروپه گوته کوي.

❖ د الله تعالى نعمتونه چې پر انسان يې پېرزو کړي دي دومره زيات دي چې انسان يې د شمېرلو وس نه لري.

- پر انسان لازمه ده چې د الهي نعمتونو پر وړاندې ناشکري او غفلت ونه کړي.
- که چېرې انسان د الله ﷻ نعمتونه د الله ﷻ په لار او طاعت کې ونه کاروي، نو په حقیقت کې یې پر خپل ځان ظلم کړی دی.
- باید وپوهېږو چې د شکر ادا کول یوازې په ژبې پورې منحصر نه دي. گناه کول او د الله ﷻ له اوامرو څخه سرغړونه د ناشکرۍ روښانې بڼې دي او د الله ﷻ اطاعت او د نېکو اعمالو ترسره کول د منننې او شکر ادا کولو غورې لارې دي.




۱- الله تعالی د څه لپاره شپه او ورځ پیداکړې ده؟
۲- د شپو او ورځو د تحرک او بدلون گټې بیان کړئ؟
۳- قرآني آیتونه په دغه لوست کې د (الله) په لفظ پیل شوي، په دې کې څه گټې نغښتې دي؟
۴- د لمر او سپوږمۍ په خوځښت او دوران کې د الله ﷻ د قدرت نښې بیان کړئ؟
۵- په پورتنیو آیتونو کې یاد شوي نعمتونه وشمیرئ؟

نهم لوست

## د الله ﷻ په لوري بلنه

﴿وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَآ إِلَى ٱللَّهِ وَعَمِلَ صَٰلِحًا وَقَالَ إِنَّنِى مِنَ ٱلْمُسْلِمِينَ ۝ وَلَا تَسْتَوِى ٱلْحَسَنَةُ وَلَا ٱلسَّيِّئَةُ ۚ ٱدْفَعْ بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ فَإِذَا ٱلَّذِى بَيْنَكَ وَبَيْنَهُۥ عَدَٰوَةٌ كَأَنَّهُۥ وَلِىٌّ حَمِيمٌ ۝ وَمَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ وَمَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ﴾ [فصلت: آية: ٣٣- ٣٥]

**د کلمو او جملو معنا وې**

| | |
|---|---|
| ٱدْفَعْ بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ: | بدۍ ته په نېکۍ ځواب ورکړه (د بدۍ مخنیوی په هغه څه سره وکړه چې هغه ډېر ښه وي). |
| وَلِىٌّ حَمِيمٌ: | نژدې، خوږ او ګران دوست. |
| مَا يُلَقَّىٰهَآ: | دا ښه صفت (مقام) نه ورکول کېږي. |
| حَظٍّ عَظِيمٍ: | لويه برخه. |

**ژباړه**

او د هغه چا له خبرې نه به ښه خبره د چا وي چې هغه د الله خوا ته بلنه ورکړه او نیک عمل يې وکړ او ويې ويل بيشکه زه له مسلمانانو څخه يم او (ای پېغمبره!) نيکي او بدي يو شانته نه دي، ته د بدۍ مخنيوی په هغې نيکۍ سره وکړه چې هغه ډېره ښه وي، ته به وګورې چې له تاسره د چا دښمني وه. هغه به دې خوږ دوست ګرځېدلی وي. دغه صفت نه په برخه کېږي، مګر هغو خلکو ته چې صبر کوي او دغه مقام نه په برخه کېږي، مګر هغو خلکو ته چې د غټې برخې خاوندان دي.

**تفسیر**

اجمالي معنا: حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه ویلي دي چې د دې الهي وینا ﴿وَمَنْ أَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّن دَعَآ...﴾ څخه مراد د الله ﷻ پیغمبر دی چې خلک یې د اسلام لوري ته راوبلل او رښتینی عمل یې وکړ او د اسلام سپېڅلی دین یې مونږ ته د الهي ډالۍ په توګه پرېښود. په یوه بل روایت کې له عبدالله بن عباس رضي الله عنهما څخه نقل شوی دی چې مراد له دې آیت څخه د پیغمبر ﷺ صحابه او یاران دي. او د ﴿فَإِذَا ٱلَّذِى بَيْنَكَ﴾ آیت په هکله مفسرینو ویلي دي چې دا د ابو سفیان بن حرب په هکله نازل شوی دی چې د پیغمبر ﷺ ډېر سخت دښمن و خو بیا یې دوست او ملاتړی شو.

**غوره وینا**

پورتنیو آیتونو د یو انسان د غوره وینا لپاره دري صفتونه بیان کړي دي.

- څوک چې د الله ﷻ توحید، طاعت او عبادت ته بلنه ورکوي.
- څوک چې په ښو او نیکو اعمالو چې الله ﷻ پرې امر کړی، التزام او پابندي ولري او د الله ﷻ له محرماتو څخه ځان وژغوري.
- څوک چې له نیکو مسلمانانو سره اړیکې او له هغوی سره دوستي، محبت او همکاري ولري او له هغوی څخه دفاع وکړي.

**د الله لوري ته بلنه یوه شرعي وجیبه ده**

محمدي شریعت انسانانو ته د الله جل جلاله وروستی رسالت او نظام دی، خلکو ته د دې دین رسول او اسلامي احکامو او لارښوونو ته د خلکو هڅول، یوازې د دعوت له لارې ممکن دي. دالله لور ته بلنه یوه شرعي وجیبه ده او ځانته اصول او قواعد لري چې د قرآن کریم او د رسول علیه السلام له سنتو څخه اخیستل شوي دي.

هر مسلمان (نر او ښځه) په دې مکلف دي چې د خپلې پوهې او وس سره سم د دین د خپرولو په لاره کې زیار وباسي. په قرآن کریم کې د دعوت او د دعوت د لارو چارو په اړه ګڼ شمیر آیتونه راغلي دي، په دې آیتونو کې ټینګار شوی دی چې دعوت باید په نرمه لهجه، نیکو اخلاقو او غوره خبرو اترو سره ترسره شي. د بېلګې په ډول الله جل جلاله د بلونکو امام

او لاربنود حضرت محمد صلى الله عليه وسلم ته داسې فرمايي: ﴿ادْعُ إِلَى سَبِيلِ رَبِّكَ بِالْحِكْمَةِ وَالْمَوْعِظَةِ الْحَسَنَةِ وَجَادِلْهُمْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ..﴾ [النحل: ١٢٥] ژباړه: (اى پیغمبره!) د خپل رب لارې ته په حکمت او غوره نصیحت سره بلنه وکړه او له خلکو سره په داسې ډول مباحثه وکړه چې ډېره غوره وي.

## د الله په لاره کې د دعوت او بلنې آداب

د الله ﷻ د دین د اصولو او اساساتو له بیانولو او د بنده او الله تعالی ترمنځ د اړیکو له ټینګولو وروسته، الله تعالی د داعیانو او بلونکو آداب او د بندګانو ترمنځ د نیکو اړیکو د استحکام په هکله داسې فرمايي:

﴿ وَلَا تَسْتَوِى ٱلْحَسَنَةُ وَلَا ٱلسَّيِّئَةُ ۚ ٱدْفَعْ بِٱلَّتِى هِىَ أَحْسَنُ فَإِذَا ٱلَّذِى بَيْنَكَ وَبَيْنَهُۥ عَدَٰوَةٌ كَأَنَّهُۥ وَلِىٌّ حَمِيمٌ ۝ وَمَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ وَمَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ذُو حَظٍّ عَظِيمٍ ﴾.

د الله تعالی لورې ته بلونکي (داعيان) ډېر غوره خلک دي، نو پر دوی لازم دي چې له خلکو سره خپلې اړيکې نيکې کړي او د ستونزو، کړاوونو او تکاليفو په وړاندې له صبر او زغم څخه کار واخلي او بديو ته په نيکۍ او احسان ځواب ورکړي– الله تعالی فرمايلي دي چې ښه او بده وينا او کړنه برابره نه ده، ځکه الله تعالی له ښې وينا او کړنې څخه راضي او خاوند ته يې نيکه بدله ورکوي، خو له ناوړې او بدې وينا او کړنې څخه ناراضه کېږي او خاوند ته يې سزا ورکوي، نو پر دې اساس مؤمن دعوت کوونکي ته لازمه ده چې د خلکو بدۍ ته په نيکۍ ځواب کړي او د بدۍ په وړاندې له نيکۍ څخه کار واخلي چې دا کار د هغه لپاره وړ او غوره دی او د هغه فضيلت او وړتيا ښکاره کوي.

کله چې د الله د دين دعوت کوونکی، بدي په احسان او نيکۍ او ګناه په بښنه او زغم ځواب کړي، نو په حقيقت کې دی د خلکو دوستي حاصلوي، د هغوی کرکه او کينه لرې کوي او دښمن يې په خواخوږي او رښتيني دوست بدلېږي.

دا ستر خصلت د هغه چا په برخه کېږي چې د خپل نفس په وړاندې مجاهده او هلې ځلې کوي او د قهر، غوسې، آزار او ضرر په مقابل کې له صبر، زغم او حوصلې څخه کار اخلي. همدارنګه دا ښه او نيک صفتونه يوازې د هغو کسانو په برخه کېږي چې په دنيا کې د نيکمرغۍ څخه برخمن وي او په آخرت کې د اجر او ثواب د ترلاسه کولو لپاره هلې ځلې کوي.

ابن عباس رضي الله عنه د ﴿ وَمَا يُلَقَّىٰهَآ إِلَّا ٱلَّذِينَ صَبَرُوا۟ ... ﴾ د آيت په تفسير کې ويلي دي چې الله تعالى مؤمنانو ته امر کړی دی، ترڅو د قهر او غضب پر وړاندې له صبر او

حوصلې، د جهل پر وړاندې له حلم او نرمۍ او د بدۍ پر وړاندې له عفوې او ښښنې څخه کار واخلي، نو هرکله چې داسې کارونه ترسره کړي، الله پاک به دی د شیطان له شر څخه ساتي، دښمن به یې ورته تابع گرځوي او هغه به ورته په خواخوږي او خواږه دوست بدلوي.

**فعالیت**

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي او له مشورې وروسته دې یو زده کوونکی د خپل گروپ په استازیتوب د بدۍ په مقابل کې د ځواب ویلو طریقه شرح کړي، بیا دې د دویمې ډلې زده کوونکي د لومړۍ ډلې په خبرو کره کتنه وکړي.

## د لوست گټې او لارښوونې

د دې لوست له آیتونو څخه ډېرې گټې ترلاسه کېږي چې ځینو ته یې اشاره کوو:

- په دنیا کې د الله ﷻ لوري ته له داعیانو څخه هېڅوک ښه او غوره نشته، همدوی دي چې د ایمان، عمل او دعوت ترمنځ یې یووالی راوستی دی.
- پر مؤمن لازم دي چې خپل ایمان ظاهر او هغه اعلان کړي او په مجلسونو، غونډو او ټولنو کې د ایمان په درلودلو د عزت او ویاړ څرگندونه وکړي چې دا په خپله تر ټولو ښه بلنه او دعوت دی.
- لکه څرنگه چې نیکي او بدي یو شانته نه دي، نو پر مؤمن لازمه ده چې نیکي غوره کړي او بدۍ ته په نیکۍ ځواب ووایي.
- له نورو سره احسان او نیکي او د هغوی د ناوړو کړو وړو زغمل، په پای کې دښمنان په رېښتینو ملگرو او دوستانو بدلوي.




۱- هغه درې صفتونه چې په آیت کې د یوه انسان د غوره وینا په هکله ذکر شوي دي، بیان کړئ؟
۲- ولې نېکي او بدي برابر نه دي؟ نېکي پر نیک عمله انسان څه اغیزه لري او بدي پر بدکاره انسان څه اثرات او اغېزې درلودلای شي؟
۳- نیکي او احسان پر دښمنانو څه اغېزه لري؟
۴- له مبارکو آیتونو څخه د بدۍ پر وړاندې د نیکۍ غوره کولو کړنلاره استنباط کړئ؟




د دعوت د هغو کړنلارو په هکله چې د خلکو په رابللو کې اغیزناکې دي، یوه مقاله ولیکئ چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

لسم لوست

# ایمان او نیک عمل

﴿ وَٱلۡعَصۡرِ ۝ إِنَّ ٱلۡإِنسَٰنَ لَفِي خُسۡرٍ ۝ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَتَوَاصَوۡاْ بِٱلۡحَقِّ وَتَوَاصَوۡاْ بِٱلصَّبۡرِ ﴾ [العصر: ۱-۳]

**د کلمو او جملو معناوې**

وَٱلۡعَصۡرِ: قسم په وخت او زمانې، یا د مازدیگر په لمونځ، یا د مازدیگر د لمانځه په وخت.

وَتَوَاصَوۡاْ بِٱلۡحَقِّ: او یو تر بله یې په حق وصیت کړی وي.

**ژباړه**

قسم په زمانې (عصر) یقیناً انسان په تاوان کې دی، مگر (په تاوان کې نه دي) هغه کسان چې ایمان یې راوړی، نیک عملونه یې ترسره کړي او یو بل ته په حق ویلو او صبر کولو وصیت کوي.

**تفسیر**

الله ﷻ په زمانې قسم او لوړه یاده کړې ده او تاکید یې کړی دی چې انسان په تاوان کې دی، مگر هغه کسان له دې تاوان څخه په امن دي چې د پاسني آیت په ترڅ کې استثنا شوي دي.

**په زمانه باندې د الهي قسم راز او حکمت**

دا چې الله ﷻ په زمانه قسم یادوي دا د دې ښکارندوی دی چې زمانه او وخت د الله ﷻ په نزد د لوړ ارزښت او شرف څخه برخمن دی. نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: «لَاتَسُبُّوا الدَّهْرَ، فَإِنَّ اللهَ هُوَ الدَّهْرُ» یعنې دهر یا زمانې ته کنځلې مه کوئ ځکه الله ﷻ دهر یا زمانه دی.

په دې معنا چې الله تعالی د زمانې بدلوونکی، گرځوونکی، متصرف او واکدار دی.

**د عصر نورې معناوې**

ځینو مفسرینو ویلي دي چې له عصر څخه مراد د مازدیگر لمونځ یا د مازدیگر د لمانځه وخت دی.

د دې خبرې له مخې د مازدیگر د لمانځه غوره والی او فضیلت ثابتېږي، او په همدې دلیل ډېرو علماوو ﴿والصَّلاَةِ الْوُسْطَى﴾ یعنې منځنی لمونځ د مازدیگر په لمانځه تفسیر کړی دی.

د ځینو علماوو په نزد په دې آیت کې دې خبرې ته اشاره ده چې د دنیا عمر د مازدیگر او ماښام ترمنځ د مودې په شان لنډ او مختصر دی.

نو پر انسان لازمه ده ترڅو دا لنډه موده چې ډېره زياته ارزښتناکه پانګه ده بايد په داسې تجارت کې ولګوي چې تاوان ونه لري، ځکه وخت او زمانه ډېره لنډه ده او څه چې له منځه ولاړ شي او تېر شي، هغه بيا په لاس نه راځي.

**له زيان څخه نجات موندونکي**

وروسته له هغه چې انسان د خپل عمر له قيمتي پانګې څخه په ګټې نه اخېستلو سره تاواني وګڼل شو، الله ﷻ مخلص مؤمنان له دې زيان څخه مستثنی کړل او په اړه يې داسې وفرمايل:﴿ إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ ﴾ يعنې: هغه کسان چې په اللهﷻ ايمان ولري او ښه عملونه ترسره کړي هېڅکله به زيان او تاوان ونه ويني، ځکه هغوی د آخرت د ورځې لپاره کار کوي او د دنيا لپاره زيار د هغوی د آخرت د کار پر وړاندې خنډ نه ګرځي، دا ځکه چې هغوی د ښو عملونو په ترسره کولو سره په حقيقت کې د ايمان په مقتضا عمل کړی دی.

همدارنګه له زيان او تاوان څخه مستثنی شوي کسان هغه دي چې يو بل ته په حق سره توصيه او نصيحت کوي، الله تعالی فرمايي:﴿ وَتَوَاصَوۡاْ بِٱلۡحَقِّ ﴾

د يادولو وړ ده چې حق د باطل په مقابل کې ځای لري او حق ټولو نيکيو او ښو عملونو ته شامليږي، لکه: د الله ﷻ توحيد، د الله تعالی د اوامرو فرمانبرداري، د اللهﷻ پر کتابونو او پيغمبرانو ايمان، آخرت ته په دنيا ترجيح ورکول او داسې نور.

همدارنګه ا لله تعالی هغه کسان له زيان او تاوان څخه مستثنی کړي دي چې يو بل ته توصيه کوي ترڅو د عبادتونو په ترسره کولو، له ګناهونو څخه په ځان ژغورلو او د هغو د ستونزو او کړاوونو پر وړاندې چې د دعوت په لار او نورو دنيوي امورو کې انسان ته رسيږي، له صبر او حوصلې څخه کار واخلي چې دا مطلب په ﴿ وَتَوَاصَوۡاْ بِٱلصَّبۡرِ ﴾ جمله کې ادا شوی دی.

نو له زيان څخه نجات ميندونکي کسان په لاندېنيو څلورو صفاتو موصوف دي چې دغه څلور صفات عبارت دي له: ايمان، نيک عمل، په حق او صبر سره توصيه او نصيحت کول.

**د سورة العصر مقام او ارزښت**

امام شافعي رحمة الله عليه د دې سورت د اهميت په هکله فرمايلي دي که د قرآن کريم نه د العصر سورت څخه پرته بل هېڅ شی نه وای نازل شوی، نو همدا سورت د انسانانو لپاره کافي و.

همدارنګه له عبيدالله بن حفص څخه ددې سورت د فضيلت په هکله داسې روايت شوی دی: کله به چې د نبي کريمﷺ له ملګرو څخه دوه تنه له يو بل سره مخامخ کيدل، نو ترڅو به يې چې سورة العصر يو بل ته نه و اورولی، نو له يو بل څخه به نه جلا کيدل.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

- ❖ د انسان په ژوندانه کې وخت او زمان ډېر زيات ارزښت لري چې بايد يوه لحظه يې هم ضايع نشي.
- ❖ انسانان په عمومي توګه په زيان او تاوان کې دي، پرته له هغو چې ايمان يې راوړی دی او نيکو عملونو ته يې مخه کړې ده.
- ❖ هر مسلمان په حق ويلو او د الله ﷻ د دين په خپرولو مکلف دی، هغه بايد د الله ﷻ د دين ساتنه وکړي.
- ❖ مسلمانان مکلف دي چې يو بل ته د الله په طاعتونو، د نفساني غوښتنو او ګناه په پرېښودلو او د مصيبتونو او کړاوونو پر مهال په صبر کولو او د الله ﷻ قضا او قدر ته په تسليمېدلو نصيحت او سپارښتنه وکړي.




۱- د (العصر) معنا څه ده؟

۲- انسان ته د تاوان او زيان د رسيدلو لاملونه څه شی دي؟

۳- د لاندېنيو جملو معنا څرګنده کړئ:

(وَتَوَاصَوۡاْ بِٱلۡحَقِّ)

(وَتَوَاصَوۡاْ بِٱلصَّبۡرِ)

۴- امام شافعي رحمة الله عليه د العصر سورت د فضيلت او غوره والي په هکله څه فرمايلي دي؟

۵- له سورة العصر څخه کومې ګټې او لارښوونې حاصلولی شو؟




زده کوونکي دې د انسان د خلاصون او نجات د اسبابو په هکله يوه مقاله وليکي چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

# امانت او په اسلام کې د هغه ارزښت

﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَأۡمُرُكُمۡ أَن تُؤَدُّواْ ٱلۡأَمَٰنَٰتِ إِلَىٰٓ أَهۡلِهَا وَإِذَا حَكَمۡتُم بَيۡنَ ٱلنَّاسِ أَن تَحۡكُمُواْ بِٱلۡعَدۡلِۚ إِنَّ ٱللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِۦٓۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ سَمِيعَۢا بَصِيرٗا ۝ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ وَأُوْلِي ٱلۡأَمۡرِ مِنكُمۡۖ فَإِن تَنَٰزَعۡتُمۡ فِي شَيۡءٖ فَرُدُّوهُ إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ إِن كُنتُمۡ تُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ وَأَحۡسَنُ تَأۡوِيلًا﴾ [النساء : ۵۸- ۵۹]

**د کلمو او جملو معناوې**

**ٱلۡأَمَٰنَٰتِ:** امانتونه (خپل څښتن ته د بېرته ورکولو په نیت د یوه شي ساتل دي).

**ٱلۡعَدۡلِۚ:** انصاف (د حق رسیدنه خپل خاوند ته).

**فَرُدُّوه إِلَى ٱللَّهِ وَٱلرَّسُولِ:** نو الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ ته يې وسپارئ، د هغه حکم د الله ﷻ په کتاب او د هغه د رسول ﷺ په سنتو کې ولټوئ.

**ژباړه**

بېشکه الله ﷻ تاسې ته حکم کوي چې امانتونه د هغو خاوندانو ته وسپارئ او کله چې د خلکو په منځ کې فیصله کوئ، نو په عدالت سره يې وکړئ بیشکه الله پاک تاسې ته ډېر ښه نصیحت کوي او الله پاک ښه اوریدونکی او ښه لیدونکی دی.

ای مؤمنانو! د الله ﷻ، د رسول ﷺ او هغو کسانو اطاعت وکړئ چې له تاسې نه د امر خاوندان دي، بیا که ستاسو ترمنځ په کومه خبره شخړه پیښه شي نو هغه د الله ﷻ او رسول ﷺ لوري ته محوله کړئ که تاسې په رښتیا سره پر الله ﷻ او د آخرت په ورځ ایمان لرئ دا کار غوره دی او د پایلې په اعتبار هم ښه دی.

**تفسیر**

الله تعالی خپلو بندګانو ته امر کړی ترڅو امانتونه د هغو خاوندانو ته بېرته وسپاري او د حکم او پریکړې پر مهال په عدل فیصله وکړي. همدارنګه الله تعالی خپل بندګان د خپل ځان او پیغمبر ﷺ په اطاعت او پیروۍ او د چارواکو په پیروۍ مامور کړي دي. الله تعالی د لوست په لومړي آیت کې د نیکو عملونو څخه دوه خصلتونه بیان کړي دي. یو د امانتونو خاوندانو ته بېرته د هغوی امانت سپارل، بل په فیصله او حکم کولو کې له عدل څخه کار اخیستل.

**د امانتونو ادا کول**

امانت هر هغه شی دی چې انسان یې د ساتنې له کبله د اعتماد وړ ګرځي، که هغه شی مادي وي یا معنوي. کله امانت د الله ﷺ سره ژمنه او وعده وي چې ادا کول یې د الله تعالی د اوامرو عملي کول او له منهیاتو څخه یې ډډه کول دي.

که امانت د خلکو پر وړاندې وي، لکه د انسانانو امانتونه او اسرار چې ادایې پرته له درغلۍ او خیانته خپلو خاوندانو ته د هغو امانتونو او رازونو بېرته سپارل دي. عام مسؤولیتونه او دندې په غاړه اخیستل هم یو ډول امانت دی، د امانت غوښتنه دا ده چې دا مسؤولیتونه او دندې باید په سمه توګه سر ته ورسول شي. که څوک په دولتي، خصوصي یا شخصي ادارو کې په کار وګمارل شي او په خپل کار کې لټي وکړي او هغه په سمه توګه تر سره نه کړي، نو د خیانت مرتکب به شي. همدا راز د عامه شتمنیو څخه ناوړه ګټه اخیستل او د هغو په ساتنه کې بې پروایي کول هم په امانت کې د خیانت یوه بېلګه ده.

دې مبارک آیت او نورو آیتونو او نبوي احادیثو، مؤمنان د ټولو امانتونو ادا کولو ته تشویق او ترغیب کړي دي.

د امانت ساتلو او د هغه د ارزښت په هکله ډېر آیتونه او احادیث راغلي دي، لکه: چې الله تعالی فرمایي: ﴿ إِنَّا عَرَضْنَا ٱلْأَمَانَةَ عَلَى ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَٱلْجِبَالِ فَأَبَيْنَ أَن يَحْمِلْنَهَا وَأَشْفَقْنَ مِنْهَا وَحَمَلَهَا ٱلْإِنسَٰنُ ﴾ [الاحزاب:۷۲]

یعني: موږ دغه امانت، آسمانونو، ځمکو او غرونو ته وړاندې کړ، نو هغوی یې پورته کولو ته تیار نه شول او ورڅخه وویرېدل، خو انسان هغه پورته کړ او په بل ځای کې الله ﷻ امانت ساتونکي خلک بریالي ښودلي دي، فرمایي: ﴿ وَٱلَّذِينَ هُمْ لِأَمَٰنَٰتِهِمْ وَعَهْدِهِمْ رَٰعُونَ ﴾

[المعارج: ۳۲ ، المؤمنون : ۸].

يعنې: او بريمن (کامياب) هغه کسان دي چې د خپلو امانتونو او ژمنې (وعدې) پالنه او رعايت کوي.

همدارنګه نبي کريم ﷺ ايمان او دين په امانت پورې اړوند بللی دی، فرمايي: «لا إِيمَانَ لِمَنْ لا أَمَانَةَ لَهُ، وَلا دِينَ لِمَنْ لا عَهْدَ لَهُ»[1] يعنې ځوک چې امانت نه رعايت کوي ايمان نه لري او څوک چې وعده او ژمنه نه پوره کوي دين نه لري.

**په عدل سره حکم او قضاوت**

الله تعالی مؤمنانو ته امر کړی چې په خپل حکم او قضاوت کې عدل او حق په نظر کې وساتي. الله ﷻ د خپلې پاچاهۍ بنسټ په دوو اصلونو (حق او عدل) باندی ایښی دی. کله چې په حکم او قضاوت کې ظلم او بې عدالتي وي، نو انسانان د بدبختۍ او تباهۍ خواته ځي، حقوقې ضايع او د انسانانو ترمنځ فساد خپرېږي.

په دې هکله ډېر آيتونه او حديثونه راغلي چې يو له هغو دا الهي وينا ده چې فرمايي:

﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَأۡمُرُ بِٱلۡعَدۡلِ وَٱلۡإِحۡسَٰنِ﴾ [النحل: ۹۰]. يقيناً الله تعالی په عدل او احسان امر کوي.

**په ويناوو کې عدل او انصاف**

همدارنګه الله تعالی په خبرو کولو کې د عدل او انصاف په رعايت کولو تاکيد کړی، الله تعالی فرمايي:

﴿ وَإِذَا قُلۡتُمۡ فَٱعۡدِلُواْ وَلَوۡ كَانَ ذَا قُرۡبَىٰۖ ﴾ [الانعام:۱۵۲]. يعنې: کله چې خبرې کوئ، نو په عدالت سره يې وکړئ، که هغه د خپلوانو په هکله هم وي.

انس بن مالک ﷺ روايت کړی چې د الله پيغمبر فرمايي: «لاَ تَزَالُ هٰذِهِ الْأُمَّةُ بِخَيْرٍ مَا اِذَا قَالَتْ صَدَقَتْ وَ اِذَا حَكَمَتْ عَدَلَتْ وَ اِذَا استُرْحَمَتْ رَحَمَتْ»[2]

يعنې: تر هغه وخته پورې به دا امت (زما امت) په خير او نيکۍ کې وي، ترڅو چې دوی په رښتيا وينا کوي او کله چې حکم کوي، عدالت کوي او کله چې ورڅخه د رحم غوښتنه وشي، رحم او مهرباني کوي.

بيا الله تعالی مؤمنانو ته خطاب کوي او فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ نِعِمَّا يَعِظُكُم بِهِۦٓۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ سَمِيعَۢا بَصِيرٗا ﴾

---

۱-المعجم الکبير للطبرانی

۲ -مسند ابو يعلی.

یعنې: الله تعالی د امانت په ادا کولو او په عدالت حکم کولو سره تاسو ته ډېر غوره نصیحت کوي چې په هغه کې ستاسو دنیوي او اخروي ګټې او نیکمرغۍ نغښتې دي، نو پر تاسو لازم ده ای مؤمنانو! چې د الله ﷻ په لارښوونو او حکمونو عمل وکړئ، ځکه الله تعالی په هغه څه چې له ستاسو څخه صادرېږي (د امانتونو په ادا کولو او خیانت کولو) ښه خبر، اوریدونکی او لیدونکی دی.

**د الله ﷻ، د هغه رسول ﷺ او د اولي الامر اطاعت او پیروي**

بیا قرآنی آیت مؤمنانو ته د الله ﷻ په پیروۍ او د هغه د پېغمبر په پیروۍ امر کوي. همدارنګه الله تعالی مؤمنانو ته امر کوي چې د خپل اولي الامر یا مسلمان مشر پیروي وکړي اولی الامر یا مشر د امیر، حاکم او د مسلمانانو د سرلښکر څخه عبارت دی چې پر مسلمانانو یې پیروي او اطاعت تر هغه واجب ده ترڅو چې د الله ﷻ په نافرمانۍ امر ونه کړي، خو که چېرته د مشر امر له الهي شریعت څخه مخالف وي، نو بیا هېچا ته د هغه اطاعت او پیروي جواز نه لري، ځکه د الله ﷻ پېغمبر ﷺ فرمایلي دي:

«لا طَاعَةَ لِمَخْلُوقٍ فِي مَعْصِيَةِ الْخَالِقِ»[1] یعنې د الله ﷻ د نافرمانۍ په صورت کې د مخلوق پیروي نشته.

بیا الله تعالی مؤمنانو ته د جنګ او اختلاف پر مهال لارښوونه کړې ده چې د الله ﷻ کتاب او د هغه د رسول ﷺ سنتو ته رجوع وکړي، د الله رسول ﷺ داسې فرمایلي دي:

«مَا نَهَيْتُكُمْ عَنْهُ فَاجْتَنِبُوهُ وَمَا أَمَرْتُكُمْ بِهِ فَافْعَلُوا مِنْهُ مَا اسْتَطَعْتُمْ فَإِنَّمَا أَهْلَكَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ كَثْرَةُ مَسَائِلِهِمْ وَاخْتِلاَفِهِمْ عَلَى أَنْبِيَائِهِمْ»

یعنې: له هغه څه چې مې منع کړي یاست له هغه څخه ډډه وکړئ او په هغه څه چې مې درته امر کړی، د خپل توان او وس مطابق په هغه عمل وکړئ، له ستاسو څخه مخکې تیر شوي امتونه د دوی د زیاتو پوښتنو او اختلافونو په سبب چې د خپلو پېغمبرانو په هکله یې کول، هلاک شوي دي.

**فعالیت**

هر زده کوونکی دې په دې هکله چې څه وخت د مخلوق پیروي او اطاعت واجب او څه وخت ناروا دی، په خپلو کتابچو کې یو نبوي حدیث ولیکي.

---

۱- المعجم الکبیر للطبرانی

### د لوست ګټې او لارښوونې

د دې مبارک آیت ځینې ګټې او لارښوونې په دې ډول دي:

- ❖ د امانت ادا کول او د خلکو په منځ کې په عدل او حق سره فیصله کول.
- ❖ د مسلمان اولي الامر او مشر اطاعت او پیروي کول په هغه صورت کې چې د الله ﷻ په نافرمانۍ حکم ونه کړي.
- ❖ د مسلمانانو د اختلاف په صورت کې د الله ﷻ کتاب او د نبي کریم ﷺ سنتو ته مراجعه کول، برابره ده که دا اختلاف د دین د امورو په هکله وي یا د دنیا د امورو په هکله.




۱. د مؤمنانو دوه نیک او ښایسته عملونه بیان کړئ.؟

۲. الله پاک ولې د خلکو په منځ کې په عدل کولو سره امر کړی په عدل سره د امر کولو ګټې بیان کړئ.؟

۳. د الله ﷻ د دې وینا ﴿ أَطِيعُواْ ٱللَّهَ وَأَطِيعُواْ ٱلرَّسُولَ ﴾ څخه څه ګټې حاصلولی شو؟

۴. د الله د رسول او اولي الامر په اطاعت او پیروۍ کې څه توپیر دی؟ واضح یې کړئ.

۵. په کوم حالت کې پر مسلمانانو د خپل مشر اطاعت لازم نه دی؟ په نبوي حدیث سره یې استدلال وکړئ.

٦ – الله تعالی موږ ته هغه مرجع او منبع معرفي کړې ده چې د اختلاف او جګړې په وخت کې باید هغې ته مراجعه وکړو. هغه منبع کومه ده او دلیل یې څه دی؟

۷– د شرعي مفهوم له مخې امانت کومو شیانو ته شاملېږي؟

# د وينا او کړنې يووالی

﴿ وَلَا تَلۡبِسُواْ ٱلۡحَقَّ بِٱلۡبَٰطِلِ وَتَكۡتُمُواْ ٱلۡحَقَّ وَأَنتُمۡ تَعۡلَمُونَ ۞ وَأَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ وَٱرۡكَعُواْ مَعَ ٱلرَّٰكِعِينَ ۞ أَتَأۡمُرُونَ ٱلنَّاسَ بِٱلۡبِرِّ وَتَنسَوۡنَ أَنفُسَكُمۡ وَأَنتُمۡ تَتۡلُونَ ٱلۡكِتَٰبَۚ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ۞ وَٱسۡتَعِينُواْ بِٱلصَّبۡرِ وَٱلصَّلَوٰةِۚ وَإِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى ٱلۡخَٰشِعِينَ ۞ ٱلَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُواْ رَبِّهِمۡ وَأَنَّهُمۡ إِلَيۡهِ رَٰجِعُونَ ﴾ [البقرة:۴۲-۴۶]

**د کلمو او جملو معناوې**

وَلَا تَلۡبِسُواْ: او مه ګډوئ، مه ور آغوندئ

أَقِيمُواْ ٱلصَّلَوٰةَ: لمونځ د ارکانو، شرطونو او آدابو په مراعاتولو سره ادا کړئ.

وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ: زکات (مستحقينو ته) ورکړئ.

ٱلۡبِرَّ: نېکي (ټول نيک عملونه).

بِٱلصَّبۡرِ: په زغم.

ٱلۡخَٰشِعِينَ: عاجزي کوونکي.

**ژباړه**

او حق له باطل سره مه ګډوئ او مه پټوئ حق، حال دا چې تاسې (په دې خلط او پټولو سره) پوهېږئ او له پوهېدو سره سره د حق پټولو هڅه مه کوئ.

او لمونځ قايم کړئ، زکات ورکړئ او له رکوع کوونکو (لمونځ کوونکو مسلمانانو) سره رکوع وکړئ.

آیا تاسې نورو ته د نیکۍ لارې د غوره کولو امر کوئ او خپل ځانونه هیروئ؟ په داسې حال کې چې تاسو کتاب لولئ، نو آیا تاسې له عقل څخه کار نه اخلئ؟

او (په هرې سختۍ کې له الله ﷻ) په صبر او لمانځه سره مرسته وغواړئ، په دې کې شک نشته چې لمونځ یو ډېر درروند کار دی، خو په عاجزۍ کوونکو درروند نه دی، هغوی چې یقین کوي چې بیشکه له خپل پروردګار سره مخامخ کیدونکي دي او په تحقیق هغوی الله تعالی ته بیرته ورتلونکي دي.

## تفسیر

الله تعالی په دې آیتونو کې د ځمکې پر مخ ټولو خلکو او امتونو ته چې خپل پیغمبران یې د دوی د هدایت لپاره رالیږلي دي امر کړی دی چې حق پټ نه کړي او د خپلو باطلو غوښتنو په حکم د الله ﷻ احکامو ته تغییر ورنه کړي، دا غوښتنه یې په ځانګړي ډول له یهودو څخه وه، ځکه چې هغو ته حق معلوم و، خو د تعصب او کینې له امله یې هغه ته تغییر ورکاوه، ترڅو خلک د حق له پیروۍ څخه منع کړي. یهودو حق پټ او له باطل سره یې ګډ کړل، حال دا چې ښه پوهېدل چې حق هماغه دی چې د اسلام پیغمبر ﷺ راوړی دی.

بیا الله ﷻ مؤمنانو ته امر کوي چې د خپل دین په ارکانو عمل وکړي څو یې زړونه حق ته لاره پیدا کړي او له الله ﷻ څخه یې ویره زیاته شي.

قرآن کریم دلته داسلام دوه اساسي رکنونه بیانوي چې لومړی د لمانځه ادا کول دي او دا لوی بدني عبادت دی چې له ټولو ارکانو او شرایطو سره ادا کول یې ډېرې ګټې لري او لمونځ کوونکی له فحشا او ناروا وو څخه ژغوري. دویم رکن زکات دی چې دا تر ټولو لوی مالي عبادت دی.

پرته له شکه پردې عبادت التزام او پابندي زړونو ته سپېڅلتیا وربښي او نفسونه پاکوي.که چېرې انسان د دې عبادت په ادا کولو کې بې پروایي او غفلت وکړي، نو په دنیا او آخرت کې یې ذلت او خواري په برخه کېږي.

## د وینا او کړني مطابقت

وروسته له هغو اوامرو او ویناوو چې د یهودو طایفې ته یې وړاندې کړې، الله تعالی هغوی د غیر عاقلانه تصرفاتو او کړو وړو په مقابل کې ورټل او داسې یې ورته وفرمایل:

﴿ أَتَأۡمُرُونَ ٱلنَّاسَ بِٱلۡبِرِّ وَتَنسَوۡنَ أَنفُسَكُمۡ وَأَنتُمۡ تَتۡلُونَ ٱلۡكِتَٰبَۚ أَفَلَا تَعۡقِلُونَ ﴾ **يعنې: آيا تاسې خلکو ته په نيکو کارونو حکم کوئ او خپل ځانونه هيروئ حال داچې د الله ﷻ کتاب هم لولئ ولې له عقل څخه کار نه اخلئ.**

**دلته استفهام د توبيخ او تعجب او د يهودو د بدو کړو وړو د غندنې لپاره دی چې خلکو ته يې په نيکيو امر کاوه، خو هغوی په خپله دغه کار نه ترسره کاوه. حال دا چې د دې کار په بدۍ د تورات له مخې ښه پوهيدل، نو ځکه قرآني آيتونو د دوی عقل مخاطب ګرځولی او دوې له داسې کار څخه منع کوي او دې ته يې پام اړوي چې دا کار د عقل او پوهې د تقاضا پر خلاف دی.**

**په صبر او لمانځه سره مرسته غوښتل**

**په دې آيتونو کې الله تعالی يهوديانو ته د دې ښوونه کوي چې له خپل کتاب څخه په سمه توګه استفاده وکړي، ترڅو يې زړونه پاک او په نيتونو کې يې اخلاص راشي، نو الله تعالی هغوی ته امر وکړ چې لومړی د صبر په واسطه مرسته وغواړي، ځکه صبر انسان د الله ﷻ په هغه وعده ډاډمنوي چې صبر کوونکو ته يې د لوی اجر او ثواب زيری ورکړی دی، صبر کوونکو خپل نفسونه د خپلو غوښتنو څخه محروم کړي او په ټينګه يې له ګناه او نافرمانۍ څخه ساتلي دي.**

**همدارنګه قرآني آيتونو په لمانځه سره د مرستې د غوښتلو امر کړی دی، ترڅو په دې وسيله د بې حياييو او ناروا وو څخه ډېره وشي، ځکه د لمانځه د ادا کولو پر مهال، انسان په ښکاره او پټو حالتونو کې الله ﷻ يادوي او هغه پر خپل ځان باندې څارونکی ګڼي.**

**يقيناً لمونځ کول له داسې شرطونو او ادبونو سره يو ستونزمن کار دی مګر د هغه کسانو لپاره نه چې د الله ﷻ څخه ويرېږي او د هغه عذاب رايادوي، هغو ته دا يو آسان او زړه ته نژدې کار دی، لکه: څرنګه چې د الله ﷻ رسول فرمايلي دي:** «وَجُعِلَتْ قُرَّةُ عَيْنِي فِي الصَّلَاةِ»[1]

**يعنی زما د سترګو روښنايي او يخوالی په لمانځه کې دی.**

**الله تعالی په خشوع او عاجزۍ سره لمونځ کوونکي بنده ګان له هغو خلکو څخه مستثنا کړي دي چې لمونځ ادا کول ورته ګران برېښي. دا په دې چې دوی يقين لري چې د قيامت په ورځ به له خپل پروردګار سره مخامخ کېږي او د ټولو ستنيدنه يوازې د الله ﷻ لور ته ده او الله ﷻ به د دوی د عملونو ښه بدله ورکوي نو له همدې امله نه يوازې لمونځ ورباندې سخت او ګران نه تماميږي بلکې په ډېره مينه يې ادا کوی او د لمانځه په واسطه د الله ﷻ نه مرسته غواړي او کله چې هغوی ته کومه ستونزه پيښه شي، نو د لمانځه په ادا کولو سره د الله ﷻ عبادت ته مخه کوي. ځکه کله به چې رسول الله ﷺ ته هم څه مهم کار پيښ شو، نو لمانځه ته به يې مخه کوله.**

---

[1] - مسند امام احمد.

**فعالیت**

❖ له صبر او لمانځه څخه د مرستې غوښتنې د څرنګوالي په اړه دې زده کوونکي له یو بل سره بحث وکړي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

د دې لوست ځینې ګټې او لارښوونې په دې ډول دي:

❖ ربښتینی مؤمن د الله ﷻ د کتاب په بشپړه توګه پیروي کوي د هغه په اوامرو عمل او له نواهیو څخه یې ډډه کوي او فرایض یې په ښه شان سرته رسوي.

❖ ربښتینی مؤمن هغه دی چې یوازې له الله ﷻ څخه وویرېږي او د بل هېڅ شي پروا ونه لري.

❖ ربښتینی مؤمن هغه دی چې د الله ﷻ په ټولو اوامرو ځان مکلف ګڼي او هېڅ دیني او شرعي کار د نفس د غوښتنو لپاره نه پرېږدي.

❖ ربښتینی مؤمن هغه دی چې وینا یې له کړنې سره برابره وي او داسې څه نه وایي چې خپله پرې عمل نه کوي.

❖ ربښتینی مؤمن د ستونزو پر مهال لمانځه ته مخه کوي او د لمونځ په ادا کولو سره له الله تعالی څخه مرسته غواړي.




۱- الله تعالی ولې د لمانځه په قایمولو او د زکات په ادا کولو امر کړی دی؟

۲- د (اقامة الصلاة) معنا څه ده؟

۳- الله تعالی یهود د دوو مهمو رکنونو څخه په مرسته غوښتلو مامور کړي دي، ترڅو د ژوندانه پر ستونزو برلاسي شي. هغه دوه رکنونه کوم دي؟

۴- د صبر معنا څه ده؟

۵- د صبر ډولونه بیان کړئ؟

۶- انسان څرنګه په صبر او لمانځه مرسته ؟

# د الله ﷻ له ذکر څخه د سرغړونې پایله

﴿ وَمَن يَعْشُ عَن ذِكْرِ ٱلرَّحْمَٰنِ نُقَيِّضْ لَهُۥ شَيْطَٰنًا فَهُوَ لَهُۥ قَرِينٌ ۝ وَإِنَّهُمْ لَيَصُدُّونَهُمْ عَنِ ٱلسَّبِيلِ وَيَحْسَبُونَ أَنَّهُم مُّهْتَدُونَ ۝ حَتَّىٰٓ إِذَا جَآءَنَا قَالَ يَٰلَيْتَ بَيْنِى وَبَيْنَكَ بُعْدَ ٱلْمَشْرِقَيْنِ فَبِئْسَ ٱلْقَرِينُ ۝ وَلَن يَنفَعَكُمُ ٱلْيَوْمَ إِذ ظَّلَمْتُمْ أَنَّكُمْ فِى ٱلْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ ۝ أَفَأَنتَ تُسْمِعُ ٱلصُّمَّ أَوْ تَهْدِى ٱلْعُمْىَ وَمَن كَانَ فِى ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴾

[الزخرف: ٣٦-٤٠]

**د کلمو معناوې**

**يَعْشُ:** څوک چې د الله ﷻ له ذکر څخه بې پروايي او غفلت کوي.

**نُقَيِّضْ:** مسلط کوو.

**قَرِينٌ:** مل او همیشنی دوست او ملګری.

**لَيَصُدُّونَهُمْ:** هغوی له حق څخه اړوي.

**ٱلسَّبِيل:** حقه لاره، د اسلام دین

**ژباړه**

څوک چې د رحمن خدای ﷻ له ذکر څخه ځان په غفلت او بی پروایۍ کې اچوي، نو موږ په هغه باندې یو شیطان مسلط کوو، نو هغه به یې ملګری وي، دا شیطانان دغسې خلک له سمې لارې څخه منع کوي او هغوی (له ځانه سره) دا ګمان کوي چې موږ په سمه روان یو، ترڅو چې کله (دغه انسان) زموږ حضور ته راشي، نو خپل شیطان دوست ته به ووایي: کاشکې زما او ستا ترمنځ د ختیځ او لویدیځ لیرې والی وای ته خو ډیر بد ملګری وې.

او نن ورځ به (دا بیزاري) تاسې ته هېڅ ګټه ونه رسوي، ځکه چې تاسې ظلم کړی دی ستاسې لپاره بیشکه تاسې (او ستاسې شیطان) په عذاب کې یو برابر او شریکان یئ.
نو ای پیغمبره! آیا ته به کاڼه واوروې یا به ړندو او په ښکاره ګمراهۍ کې غورځیدلو خلکو ته لاره وښیې؟

**تفسیر**

**د بدې ملګرتیا پایله**

دا مبارک آیتونه بیانوي چا چې د الله ﷻ له ذکر او لارې څخه سرغړونه کړې او په کایناتو او قرآن کریم کې د الله ﷻ د واضحو او ښکاره دلیلونو څخه سترګې پټوي او په باطله لاره درومي، نو الله تعالی شیطان د ده ملګری او مل ګرځوي.
د مسلم په روایت حدیث دی چې د هر مسلمان لپاره یو جني ملګری وجود لري او شیطان کولای شي د آدم د اولادې د وینو په جریان کې حرکت وکړي.
په دې ترتیب شیطانان خپل کافر پیروان او دوستان له حقې لارې څخه اړوي او هغوی داسې ګڼې چې لارموندونکي دي حال دا چې دوی په ښکاره ګمراهۍ کې دي، ترڅو چې بیا را ژوندي کړای شي، لکه چې الله تعالی فرمایي: ﴿ وَإِنَّهُمۡ لَيَصُدُّونَهُمۡ عَنِ ٱلسَّبِيلِ وَيَحۡسَبُونَ أَنَّهُم مُّهۡتَدُونَ ﴾
یعنې شیطانان همیشه له الله ﷻ څخه غافل خلک د الله ﷻ له لارې څخه اړوي او هغوی داسې ګڼي چې هدایت موندونکي دي.
الله تعالی موږ ته خبر راکوي چې کله د قیامت په ورځ الله ﷻ کافر انسان ژوندی کوي، نو دا کافر هیله کوي چې د ده او د ناوړه ملګري ترمنځ یې د ختیځ او لوېدیځ فاصله وای او دا کافران خپلو ملګرو ته وایي: کاشکې تاسومې نه وای پیژندلي او تاسو زه نه وای پیژندلی، کاشکې تاسومې نه وای لیدلي او تاسو زه نه وای لیدلی، تاسې څومره بد او ناوړه یاران او دوستان وئ.
خو الهي فرمان دوی ټولو ته داسې څرګندونه کوي چې ستاسوله یو بل څخه بیزاري او نفرت ګټه نه لري بلکې تاسې ټول د عذاب مستحق او وړ یئ او په دې دردناک عذاب کې شریک یئ (او ستاسو په عذاب کې به څه کمی رانشي).

**هدایت د الله ﷻ له لوري دی**

بیا قرآني خطاب د الله ﷻ پیغمبر ته متوجه شوی، الله ﷻ له خپل نبي څخه پوښتنه کوي چې آیا ته به هغه څوک واورولی شې چې هغه د اوریدنې له نعمت څخه محروم شوی وي؟ او یا به وکولای شې چې ړانده لیدونکي کړې؟ او یا په ښکاره ګمراهۍ کې ډوبو خلکو ته لارښوونه وکړې؟ نه دا ټول کارونه ستا له وس او قدرته پوره نه دي او ته یوازې هغو کسانو ته تبلیغ کوونکی او ویره ورکوونکی یې چې وغواړي خپل ځان د دوزخ له اوره وژغوري، لکه: څنګه چې الله ﷻ د دې امر ټینګار خپل رسول ته کړی دی.

﴿ أَفَأَنتَ تُسۡمِعُ ٱلصُّمَّ أَوۡ تَهۡدِی ٱلۡعُمۡیَ وَمَن كَانَ فِی ضَلَـٰلࣲ مُّبِینࣲ ﴾ یعنې آیا ته دې کڼو ته کولای شې خبرې واوروې او یا دې ړندو او ضدي ګمراهانو ته لارښوونه وکړې؟ همدارنګه د دې لوست مبارک آیتونه د پیغمبرﷺ او مشرکانو ترمنځ تضاد او اختلاف راپه ګوته کوي، څکه د الله ﷻ پیغمبرﷺ په اصرار او زړه سوي د دوی د دعوت لپاره هلې ځلې کوي او مشرکان په ګمراهۍ او سرغړونه ټینګار کوي او د قرآن او نبوت له ښکاره دلایلو څخه سترګې پټوي او کفر او عناد ته دوام ورکوي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

له مبارکو آیتونو څخه ځینې ګټې او لارښوونې ترلاسه کېږي.

- ❖ څوک چې د قرآن کریم له آیتونو او ښکاره دلایلو څخه سرغړونه کوي، الله پاک به هغه ته ددې په بدل کې د داسې شیطان ملګرتیا ورپه برخه کړي چې پر ده به مسلط وي او په دنیا او آخرت کې به ورته د هلاکت او تباهۍ لور ته لارښوونه کوي.
- ❖ کافران په ګمراهۍ کې روان دي په داسې حال کې چې دوی ګمان کوي چې لارموندونکي دي.
- ❖ باید په قرآن کریم منګولې ونښلوئ ځکه قرآن کریم انسان ته هغه سمه او نیغه لاره ښیي چې د دنیا او آخرت د نیکمرغیو ضمانت کوي.
- ❖ د قرآن کریم پیروي په دنیا او آخرت کې د عزت او سرلوړۍ لامل دی چې عربو د قرآن په نازلیدلو سره دا عزت او مرتبه ترلاسه کړه، لکه: څرنګه چې الله تعالی دا حقیقت خپل پیغمبرﷺ ته داسې بیـــان کړی دی: ﴿وَإِنَّهُۥ لَذِكۡرࣱ لَّكَ وَلِقَوۡمِكَ﴾ [الزخرف: ۴۴] یعنې: قـــرآن کریم ستا او ستا د قوم لپاره شرف او عزت دی.




۱- د هغو کسانو سزا چې د الله له ذکر څخه مخ اړوي او د هغه له آیاتو څخه سترګې پټوي څه ده؟
۲- شیطانان د خپلو پیروانو او دوستانو سره څه کار کوي؟
۳- پیروان او امر منونکي د قیامت په ورځ خپلو مشرانو او متبوعانو ته څه وایي؟
۴- قرآني نص څه شی د پیغمبرﷺ له قدرت او صلاحیت څخه لرې ګڼلی دی؟

# نیکي څه ده؟

﴿ لَّيۡسَ ٱلۡبِرَّ أَن تُوَلُّواْ وُجُوهَكُمۡ قِبَلَ ٱلۡمَشۡرِقِ وَٱلۡمَغۡرِبِ وَلَٰكِنَّ ٱلۡبِرَّ مَنۡ ءَامَنَ بِٱللَّهِ وَٱلۡيَوۡمِ ٱلۡأٓخِرِ وَٱلۡمَلَٰٓئِكَةِ وَٱلۡكِتَٰبِ وَٱلنَّبِيِّـۧنَ وَءَاتَى ٱلۡمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِۦ ذَوِي ٱلۡقُرۡبَىٰ وَٱلۡيَتَٰمَىٰ وَٱلۡمَسَٰكِينَ وَٱبۡنَ ٱلسَّبِيلِ وَٱلسَّآئِلِينَ وَفِي ٱلرِّقَابِ وَأَقَامَ ٱلصَّلَوٰةَ وَءَاتَى ٱلزَّكَوٰةَ وَٱلۡمُوفُونَ بِعَهۡدِهِمۡ إِذَا عَٰهَدُواْۖ وَٱلصَّٰبِرِينَ فِي ٱلۡبَأۡسَآءِ وَٱلضَّرَّآءِ وَحِينَ ٱلۡبَأۡسِۗ أُوْلَٰٓئِكَ ٱلَّذِينَ صَدَقُواْۖ وَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلۡمُتَّقُونَ ﴾ [البقرة: ۱۷۷]

**د کلمو او جملو معناوې**

ٱلۡبِرَّ: نېکي (د هر ښه کار لپاره جامع او کامل نوم دی).

ٱبۡنَ ٱلسَّبِيلِ: مسافر (چې د مال، کورنۍ او وطن څخه لرې وي).

فِي ٱلرِّقَابِ: د غلامانو په آزادولو (د غاړې په خلاصولو) کې.

ٱلۡبَأۡسَآءِ: فقر او سختي.

ٱلضَّرَّآءِ: ضررونه (لکه مرض، وېره او داسې نور).

وَحِينَ ٱلۡبَأۡسِۗ: د جنګ په وخت کې.

**ژباړه**

نیکي دا نه ده چې تاسې خپل مخونه ختیځ لوري ته یا لویدیځ لوري ته واړوئ، بلکې نیکي دا ده چې انسان الله ﷻ او د قیامت ورځ او پرښتې او د الله ﷻ نازل کړی شوي کتابونه او د هغه پیغمبران د زړه له کومې ومني او د الله په مینه کې خپل ګران مالونه په خپلو خپلوانو، یتیمانو، مسکینانو، مسافرانو، سوال ګرو او د مریانو په آزادۍ کې مصرف کړي لمونځ قایم کړي، زکات ورکړي او (نیکان هغه کسان دي) چې کله وعده وکړي ترسره یې کړي ا و د تنګسې او غمونو په وخت کې او د حق او باطل په جګړه کې صبر وکړي. همدا رښتوني او همدا پرهیزګار خلک دي.

**تفسير**

**د قبلې ګرځېدل**

نبی کریمﷺ سره له مسلمانانو وروسته د مدینې منورې له هجرت څخه تقریباً تر یو نیم کال پورې د بیت المقدس په لوري لمونځ کاوه. د رسول علیه السلام دا غوښتنه وه چې د کعبې لور ته لمونځ وکړي، الله تعالی خپل پیغمبر ﷺ ته امر وکړ چې له دې وروسته د کعبې شریفې په لوري لمونځ ادا کړي. د مدینې یهودو د قبلې په بدلېدو په فتنو لاس پورې کړ او غوښتل یې د مسلمانانو په زړونو کې شک او تردید پیدا کړي او خلک د اسلام د دین له منلو څخه منع کړي. یهودیانو تبلیغ کاوه چې سمه قبله بیت المقدس ده او له هغه پرته بل هېڅ لوري ته لمونځ نه صحیح کېږي.

نو پر دې بنسټ الله تعالی د پورتنیو آیتونو په رالیږلو سره دا څرګنده کړه چې په لمانځه کې ختیځ یا لوېدیځ لوري ته مخ ګرځول د نیکۍ معیار نه دی، بلکې د نیکۍ معیار ایمان او هغه صالح عملونه دي چې د دې آیتونو په ترڅ کې په تفصیل سره بیانېږي.

**نیکي او ډولونه یې**

پورتنی مبارک آیت بیانوي چې نیکي په لمانځه کې د مشرق او مغرب لوري ته مخ اړول نه دي، بلکې نیکي د ایمان، اخلاقو او غوره اعمالو څخه عبارت ده.

دا مبارک آیت د نیکۍ بنسټونه په لاندې چارو کې بیانوي:

**د ایمان بنسټونه**

د نیکۍ بنسټیز اصل په یو او بې نیازه الله ﷻ باندې ایمان راوړل دي چې د ټولو نیکیو اساس او بنسټ بلل کېږي، د آخرت پر ورځ ایمان راوړل دي چې په هغه ورځ له هر چا سره حساب کېږي او بیا ثواب او عذاب پرې مرتبېږي، په پرښتو ایمان راوړل دي او په انبیاؤ ایمان راوړل دي چې خلکو د دوی بلنه منله او د هغوی په هدایت او لارښوونه یې عمل کاوه دا د نیکیو اساس دی چې هر انسان باید په هغه ایمان او باور ولري، ترڅو له سالمې عقیدې، نیکمرغۍ او کامیابۍ څخه برخمن شي.

**نیک عملونه**

د ایمان له اصولو او بنسټونو څخه وروسته مبارک آیت د نیکو عملونو اصول او بنسټونه بیان کړي دي چې د ایمان نتیجه او ثمره ده، لکه: څرنګه چې الله تعالی د ښه انسان په وصف کې

فرمايي: ﴿ وَءَاتَى ٱلۡمَالَ عَلَىٰ حُبِّهِۦ ذَوِي ٱلۡقُرۡبَىٰ وَٱلۡيَتَـٰمَىٰ وَٱلۡمَسَـٰكِينَ وَٱبۡنَ ٱلسَّبِيلِ وَٱلسَّآئِلِينَ وَفِي ٱلرِّقَابِ ﴾ يعنې مال او دولت سره له ډېرې مينې له هغه سره، هغو كسانو ته وركړئ چې زياته اړتيا ورته لري، لكه: خپلوان، يتيمان، فقيران، مسكينان، په لاره كې پاتې مسافران، سوال كوونكي او د غلامانو په آزادۍ كې دې وركړې.

په ډېر تأسف سره خلكو دغه حقوق چې په قرآن كريم كې پرې تاكيد او ټينګار شوى دى هېر كړي دي او يا ورڅخه غافله شوي دي، كه چېرې مسلمانان دا حقوق مراعات كړي او عمل پرې وكړي نو دوى به له غوره خلكو او غوره امتونو څخه وګڼل شي او په دې سره به د نورو امتونو خلک د دې لوړو ارزښتونو په ليدلو د اسلام مقدس دين ته مخه وكړي.

همدارنګه د غوره عملونو له ډلې څخه د لمانځه اداء كول سره له ټولو آدابو او شرطونو دي.

همدارنګه بل له نيكو عملونو څخه د زكات د فريضې اداء كول دي چې ډېر ځله قرآن كريم هغه له لمانځه سره پيوست ذكر كړى دى.

**غوره اخلاق**

قرآني آيت د ايمان او نيكو عملونو له بيانولو وروسته د اخلاقو اصول بيانوي ترڅو مسلمان پر هغو پابندي ولري چې دا په خپله د ايمان ثمره ده. پر ژمنه وفا، په تنګ لاسۍ، ستونزو او جهاد كې صبر كول د غوره اخلاقو له ډلې څخه دي چې قرآن كريم د خير او نيكۍ په عنوان ياد كړي دي.

ختيځ يا لوېديځ ته مخ ګرځول نيكي نه ده، بلكې نيكي د ايمان، نيكو عملونو او د اخلاقو له ټولو اصولو او بنسټونو څخه عبارت ده چې دې مبارک آيت دا ټول اصول رانغښتي دي.

د آيت په پاى كې هغه كسان چې د الله ﷻ د اوامرو پابندي كوي او د خپل دين لارښوونې په ښه توګه ترسره كوي، قرآن كريم په دوو لويو صفتونو ستايلي دي:

۱- هغوى د ايمان په دعوه كې رښتيني دي، ځكه دوى يوازې په ژبه ايمان نه دى راوړى بلكې ايمان يې په زړونو او عملونو سره ثابت كړى دى.

۲- دوى متقيان او پرهيزګاران دي چې پر قرآن يې عمل كړى او له الله ﷻ څخه ويريدلي او د آخرت د ورځې لپاره يې تيارى او چمتووالى ښودلى او خپل ظاهر يې له باطن سره برابر كړى دى.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

له تير شوي مبارک آيت څخه لاندې ګټې ترلاسه كوو:

- ❖ انسان تر هغه پورې مؤمن نه ګڼل كېږي، ترڅو چې له الله ﷻ او د الله له پيغمبر ﷺ سره مينه او دوستي پر نورو ټولو مينو او دوستيو لوړه ونه بولي، زړه يې د الله ﷻ په ياد ډاډمن نشي او له ګناهونو څخه ځان و نه ژغوري.

❖ نیک عملونه او کړه وړه د صحیح ایمان ثمره او پایله ده.
❖ ډاډمنه او سوکاله ټولنه هغه ټولنه ده چې د وګړو ترمنځ یې، مینه، دوستي، مرسته او خواخوږي حاکمه وي، څکه داسې ټولنه د یوه جسم او تن په څېر وي چې د یوه غړي په درد او رنځ سره ټوله ټولنه ناکراره کېږي.
❖ ډاډمنه او نیکمرغه ټولنه هغه ده چې وګړي یې د اسلام د ستر پیغمبر ﷺ په غوره اخلاقو ستایل شوي وي.




۱- له (البر) څخه مقصد څه شی دی؟ او دا آیت د قبلې د تحویل له موضوع سره څه اړیکې لري څرګند یې کړئ؟
۲- دې مبارک آیت د ایمان بنسټونه د نیکۍ د اصولو او اساس په توګه ذکر کړل، د ایمان دا بنسټونه بیان کړئ؟
۳- هغه ایمان چې قرآن یې له انسان څخه غوښتنه کوي، څرنګه ایمان دی؟
۴- مستحقینو ته د مال ورکړه د نیکۍ د بنسټونو له جملې څخه ده، کوم کسانددې مستحق دي چې مال ورته ورکړل شي؟
۵- قرآني آیت ولې خپل او خپلوان د مال د ورکړې لپاره مقدم کړي دي؟
۶- مسکین او ابن السبیل څوک دي؟
۷- د لمانځه له ادا کولو څخه مقصد څه دی؟
۸- دې مبارک آیت د اخلاقو اصول بیان کړي دي چې انسان باید پرې پابندي ولري دا اصول کوم دي؟
۹- دې مبارک آیت هغه کسان چې د نیکۍ په اصولو او بنسټونو پابندي لري، څرنګه ستایلي دي؟
۱۰- قرآن کریم صبر او حوصله په دریو حالتونو کې خاص کړې ده، هغه درې حالتونه کوم دي؟




د دې مبارک آیت په رڼا کې:
الف: هغه نص چې د انسان اړیکې یې د خپل پروردګار سره، د انسان اړیکې یې د خپل نفس سره او د انسان اړیکې یې له نورو سره بیان کړي دي، څرګند کړئ.
ب: د دې لوست د مبارک آیت د مضامینو په هکله یوه پنځلس کرښې مقاله ولیکئ.

# په اسلام کې د سولې ارزښت

﴿إِنَّمَا ٱلۡمُؤۡمِنُونَ إِخۡوَةٞ فَأَصۡلِحُواْ بَيۡنَ أَخَوَيۡكُمۡۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَ لَعَلَّكُمۡ تُرۡحَمُونَ ۝ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا يَسۡخَرۡ قَوۡمٞ مِّن قَوۡمٍ عَسَىٰٓ أَن يَكُونُواْ خَيۡرٗا مِّنۡهُمۡ وَلَا نِسَآءٞ مِّن نِّسَآءٍ عَسَىٰٓ أَن يَكُنَّ خَيۡرٗا مِّنۡهُنَّۖ وَلَا تَلۡمِزُوٓاْ أَنفُسَكُمۡ وَلَا تَنَابَزُواْ بِٱلۡأَلۡقَٰبِۖ بِئۡسَ ٱلِٱسۡمُ ٱلۡفُسُوقُ بَعۡدَ ٱلۡإِيمَٰنِۚ وَمَن لَّمۡ يَتُبۡ فَأُوْلَٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّٰلِمُونَ﴾ [الحجرات: ١٠- ١١]

**د کلمو او جملو معنا وې**

| | |
|---|---|
| لَا يَسۡخَرۡ قَوۡمٞ مِّن قَوۡمٍ: | یوه ډله دې پر بلې ډلې ملنډې نه وهي. |
| وَلَا تَلۡمِزُوٓاْ أَنفُسَكُمۡ: | یو د بل عیب مه وایئ. |
| وَلَا تَنَابَزُواْ بِٱلۡأَلۡقَٰبِۖ: | او نارې مه وهئ یو بل ته په بدو نومونو سره |
| بِئۡسَ ٱلِٱسۡمُ ٱلۡفُسُوقُ بَعۡدَ ٱلۡإِيمَٰنِۚ: | له ایمان راوړلو وروسته فسق ډېر بدنوم دی. |

**ژباړه**

بېشکه مؤمنان سره ورونه دي، نو د خپلو ورونو په منځ کې روغه راولئ او له الله ﷻ شخه ووېرېږئ ښايي چې پر تاسې رحم وکړای شي، ای مؤمنانو! نه دې نارینه پر نورو نارینه وو ټوکې او ملنډې وهي، کیدای شي چې هغوی له دوی نه غوره وي او نه دې ښځې په نورو ښځو پورې ټوکې او ملنډې وهي، کیدای شي چې هغوی له دوی نه غوره وي، په خپلو کې یو د بل عیب مه وایئ او مه یو بل په بدو نومونو سره یادوئ، له ایمان راوړلو وروسته فسق ډېر بد نوم دی او هغه کسان چې له دغه کار څخه توبه ونه کړي (رجوع و نه کړي) نو هغوی ظالمان دي.

## تفسیر

### سوله او ورورولي

ددې لوست مبارک آیت یو لوی اصل او قاعده ثابتوي چې د مسلمانانو ترمنځ د اسلامي اخوت او ورورولۍ څخه عبارت دی، څکه ایمان مؤمنان خپل لور ته را ټولوي، لکه: څرنګه چې اصل او نسب ورونه راجمع کوي او لکه: څرنګه چې ورورۍ د نسب پر اساس د پیوند او اړیکو لامل دی، همدارنګه د دین په اساس هم ورورۍ د پیوند او یوځای والي لامل ګرځي، دیني او ایماني ورورګلوي د مسلمانانو ترمنځ اصلاح ته بلنه ده او د مسلمانانو ترمنځ اصلاح، تقوی او د الله ﷻ څخه وېرې ته ضرورت لري، ترڅو یې اغیزې او پایلې تل وي او د الله ﷻ د پراخه رحمت مستحق شي.

د اسلامي ورورګلوۍ د ټینګار او تایید په هکله ډېر احادیث راغلي دي، پیغمبر ﷺ فرمایلي دي: «الْمُسْلِمُ أَخُو الْمُسْلِمِ لاَ يَظْلِمُهُ وَلاَ يُسْلِمُهُ» یعنې مسلمان د مسلمان ورور دی نه به په هغه ظلم کوي او نه به یې ظالم او دښمن ته سپاري. همدارنګه په بل صحیح حدیث کې راغلي دي «الله ﷻ تر هغه د بنده مرستندوی او ساتونکی دی ترڅو چې بنده د خپل مسلمان ورور په مرسته کې لګیاوي».

### له سولې او دوستۍ څخه منافي صفتونه

الله پاک په لاندېني مبارک آیت کې اسلامي ټولنه له هغو ناوړو صفتونو څخه ژغوري چې سوله او مینه له منځه وړي او د ټولنې د وګړو ترمنځ دښمني او اختلاف پیدا کوي، الله تعالی فرمایي:

ژباړه: ای مؤمنانو! نه دې نارینه پر نورو نارینه وو ټوکې او ملنډې وهي، کیدای شي چې هغوی له دوی نه غوره وي او نه دې ښځې په نورو ښځو پورې ټوکې و ملنډې وهي، کیدای شي چې هغوی له دوی نه غوره وي، په خپلو کې یو د بل عیب مه وایئ، او مه یو بل په بدو نومونو سره یادوئ، له ایمان راوړلو وروسته په فسق کې نوم پیدا کول ډېره بده خبره ده او هغه کسان چې له دغه کار څخه توبه ونه کړي (را وانه وړي) نو هغوی ظالمان دي.

### د پورتني آیت د نازلېدلو لامل

مفسرینو د پورتني مبارک آیت څه اسباب او لاملونه ذکر کړي چې ځینو ته یې داسې اشاره کېږي: ابن عباس رضي الله عنه روایت کوي چې صفیه بنت حی بن اخطب (د نبي کریم ﷺ مېرمن) پیغمبر ﷺ ته راغله عرض یې وکړ: ای د الله رسوله! ښځې ماته پیغور راکوي، راته وایي: ای یهودۍ! ای د یهودیانو بچۍ! پیغمبر ﷺ ورته وفرمایل: ولې دې دوی ته ونه ویل چې پلار مې هارون– کاکا مې موسی او مېړه مې محمد ﷺ دی.

همدارنګه روایت دی چې دا آیت د پیغمبر ﷺ د هغو بيبیانو په هکله نازل شوی چې ام سلمه رضي الله عنها ته یې د لنډې ونې (قد) پیغور ورکړی وو.

د ﴿ وَلَا تَنَابَزُواْ بِٱلۡأَلۡقَٰبِ ﴾ د نازلیدلو د سبب په هکله د سننو څلور واړو کتابونو د ابو جبیره بن الضحاک څخه روایت کړی چې وایي: (زموږ په منځ کې داسې کسان وو چې دوه یا

درې نومونه به یې درلودل او کله به په داسې یوه نامه سره یادیدل چې له هغه څخه به یې بد وړل نو پورتنی آیت نازل شو.
همدارنګه له ابوجبیره څخه روایت شوی چې د جاهلیت په دوران کې خلک د داسې لقبونو خاوندان وو چې په هغو به ورته غږ کیده، نبي‌کریم ﷺ یوه کس ته د هغه په لقب غږ وکړ، یارانو یې عرض وکړ چې ای د الله ﷻ رسوله! هغه له دې لقب څخه بد وړي نو دا آیت ﴿ وَلَا تَنَابَزُواْ بِٱلۡأَلۡقَٰبِۖ ﴾ نازل شو.

**د عیب پلټلو، سپکولو او ملنډې وهلو څخه ځان ژغورل**

یاد شوي آیت کې اخلاقي او ټولنیز موضوعات رانغښتي دي چې د مسلمانانو د ټولنې د خوریدلو، بې اتفاقۍ او دښمنۍ مخه نیسي.
دا مبارک آیت مؤمنانو ته په غږ کولو سره پیل شوی ترڅو مؤمنان یو بل تحقیر او مسخره نه کړي.
**ملنډې یا (تمسخر):** دیته وایي چې یو انسان پر بل انسان باندې د خلکو پر وړاندې پر خپلې وینا او کړنې سره داسې ملنډې وهي چې نور خلک وربانديې وخاندي.
**لمز:** دیته وایي چې یو تن خپل مسلمان ورور په یوه خاصه وینا یا اشاره عیبجن کړي، سمه ده چې خلک خندا ته هڅوي او که نه؟ د هغه په حضور کې وي یا د هغه په غیاب کې.
څرنګه یو مؤمن پر بل مؤمن ملنډې وهي! کیدای شي هغه نر یا ښځه چې د مسخرو وړ یې ګرځیدلې ده له مسخره کوونکي نر یا ښځې څخه بهتره او ښه وي. حضرت ابو هریره رضي الله عنه روایت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: «رب أشعث أغبر ذي طمرين تنبو عنه أعين الناس، لو أقسم علي الله لأبره»[۱]
یعنې: ډېر خواره واره ویښتانو والا، ګرد وهلی د زړې جامې لرونکی چې خلک یې له لیدلو څخه مخ اړوي، که چېرې هغه په الله ﷻ قسم یادکړي نو یقیناً الله پاک یې غوښتنه پوره کوي.
نو امتیاز او غوره والی یوازې په اخلاص، رښتینولۍ ، د زړه په صفایۍ او د الله ﷻ لپاره د عمل په خالصولو لاس ته راځي نه په ظاهري نښو، ښایست، رنګ، څېره، قوم او ژبې سره.

**د ناوړه لقبونو له کارولو څخه مخنیوی**

پورتني آیت همدارنګه په ناوړه لقبونو د پیغور ورکولو څخه منع کړیده یعنې، تاسې یو او بل په بدو او ناوړه لقبونو مه یادوئ ځکه هغه کسان چې یو او بل په ناوړه لقبونو سره یادوي هغوی د منافقانو له ډلې څخه حسابیږي او فسق په اسلامي معیار کې لویه ګناه ده.
همدارنګه دې مبارک آیت په ناوړه او بدو لقبونو سره د خلکو رابلل حرام ګرځولي دي، لکه: داسې چې یو مسلمان، خپل مسلمان ورور په فاسق، منافق او داسې نورو الفاظو سره مخاطب کړي یا دا چې یو تن بل مسلمان ته د سپي، خوګ او داسې نورو الفاظو خطاب وکړي.

---

[۱] المستدرک

د اسلام علماء ټول هغه لقبونه چې انسان له هغه څخه بد وړي حرام ګرځولي دي، برابره ده چې دا لقبونه په خپله د شخص لپاره استعمالوي يا د هغه د مور او پلار لپاره او يا د هر هغه چا لپاره چې له ده سره اړيکې لري، البته هغه لقبونه چې انسانانو ورباندې شهرت موندلی دی او له هغو څخه کرکه او بد نه وړي هغوی له دې تعبير څخه مستثنی دي. خو هغه القاب چې ښه او غوره وي د هغو ذکر کول پروا نه لري، لکه: د حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه لقب چې (عتيق) ويل شوی، يا د عمر رضي الله عنه لپاره (فاروق) لقب ورکړ شوی، يا د عثمان رضي الله عنه لپاره (ذی النورين)، يا د علي رضي الله عنه لپاره (ابو تراب)، يا د خالد رضي الله عنه لپاره سيف الله، يا د عمر وبن العاص رضي الله عنه لپاره (داهية الاسلام) لقب ورکړی شوی دی.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

له دې لوست څخه لاندې ګټې او لارښوونې څرګنديږي:

- ❖ مؤمنان يو د بل وروڼه دي او ايماني وروروګلوي د نسبي وروروګلوۍ څخه ډېره غوره او بهتره ده.
- ❖ د مسلمانانو ورونو ترمنځ سوله او پخلاينه د الله تعالی امر دی.
- ❖ اسلام د ټولنې په وحدت او يووالي ټينګار کوي، لکه: څرنګه چې قرآن کريم د ناوړو اخلاقو څخه چې د ټولنې وحدت او يووالي ته ګواښ دی، منع کړې ده.
- ❖ د مؤمنانو ترمنځ يو پر بل ملنډې وهل او همدارنګه يو او بل په ناوړو لقبونو يادول چې هغه ورڅخه کرکه کوي، د قرآن کريم له نظره حرام دي.
- ❖ الله تعالی په ذکر شوي آيت کې درې شيان حرام کړي: سپکول او ملنډې وهل، د عيب څرګندولو په نيت اشاره کول او په ناوړو لقبونو سره پيغور ورکول.




۱- مؤمنان په څه شي راټوليدای شي؟

۲- وروروګلوي د قرآن کريم له نظره په څو ډوله ده؟

۳- سوله او پخلاينه د مسلمانانو ترمنځ څه حکم لري؟

۴- هغه درې ناوړه خصلتونه او صفات چې په دې لوست کې يې ممانعت بيان شوی دی څرګند کړئ او نومونه يې واخلئ؟

۵- له نوموړو ناوړو او فاسدو اخلاقو څخه د منع حکمت څه دی؟

۶- که څوک خپل ځان له ناوړه اخلاقو څخه ونه ژغوري د هغه په هکله کومه اصطلاح استعمالولی شو؟




د ټولنيزو اخلاقو په هکله يوه مقاله وليکئ چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

## د لقمان حکیم نصیحتونه خپل زوی ته (۱)

﴿وَإِذۡ قَالَ لُقۡمَٰنُ لِٱبۡنِهِۦ وَهُوَ يَعِظُهُۥ يَٰبُنَيَّ لَا تُشۡرِكۡ بِٱللَّهِۖ إِنَّ ٱلشِّرۡكَ لَظُلۡمٌ عَظِيمٞ ۝ وَوَصَّيۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيۡهِ حَمَلَتۡهُ أُمُّهُۥ وَهۡنًا عَلَىٰ وَهۡنٖ وَفِصَٰلُهُۥ فِي عَامَيۡنِ أَنِ ٱشۡكُرۡ لِي وَلِوَٰلِدَيۡكَ إِلَيَّ ٱلۡمَصِيرُ ۝ وَإِن جَٰهَدَاكَ عَلَىٰٓ أَن تُشۡرِكَ بِي مَا لَيۡسَ لَكَ بِهِۦ عِلۡمٞ فَلَا تُطِعۡهُمَاۖ وَصَاحِبۡهُمَا فِي ٱلدُّنۡيَا مَعۡرُوفٗاۖ وَٱتَّبِعۡ سَبِيلَ مَنۡ أَنَابَ إِلَيَّۚ ثُمَّ إِلَيَّ مَرۡجِعُكُمۡ فَأُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمۡ تَعۡمَلُونَ ۝ يَٰبُنَيَّ إِنَّهَآ إِن تَكُ مِثۡقَالَ حَبَّةٖ مِّنۡ خَرۡدَلٖ فَتَكُن فِي صَخۡرَةٍ أَوۡ فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ أَوۡ فِي ٱلۡأَرۡضِ يَأۡتِ بِهَا ٱللَّهُۚ إِنَّ ٱللَّهَ لَطِيفٌ خَبِيرٞ﴾ [لقمان: ۱۳-۱۶]

**د کلمو او جملو معنا وې**

| | |
|---|---|
| يَعِظُهُۥ: | هغه ته يې پند ورکاوه، هغه ته يې نصيحت کاوه. |
| وَوَصَّيۡنَا ٱلۡإِنسَٰنَ بِوَٰلِدَيۡهِ: | او انسان ته مو دمور او پلار سره په نیکۍ کولو امر کړی دی. |
| وَهۡنًا عَلَىٰ وَهۡنٍ: | د کمزورۍ د پاسه کمزوري. |
| إِلَيَّ ٱلۡمَصِيرُ: | راستنیدل زما په لوري دي. |
| وَفِصَٰلُهُۥ: | د رضاعت څخه يې جدا کول (د شېدو نه يې بېلول). |
| سَبِيلَ: | لاره |
| أَنَابَ إِلَيَّۚ: | رجوع يې کړې زما په لور. |
| مِثۡقَالَ حَبَّةٖ مِّنۡ خَرۡدَلٖ: | د اوري د دانې په اندازه، د وړې دانې په اندازه. |

**ژباړه**

او یاد کړه هغه وخت چې لقمان خپل زوی ته نصیحت کاوه، نو هغه ته یې وویل: زویه! له خدای سره څوک مه شریکوه، بې له شکه چې شرک ډېر لوی ظلم دی.

او موږ انسان ته د خپل مور او پلار د حق پیژندنې امر کړی دی، د هغه مور د کمزورۍ د پاسه کمزورۍ په حال کې هغه بار کړی، (په خپله ګېډه کې یې وساته) او دوه کلونه یې په تې ورکولو ولګېدل. (له همدې امله موږ هغه ته نصیحت وکړ) چې زما شکر وکړه او د خپل مور او پلار شکر پرځای کړه. همدا زما لوري ته ستا راګرځېدل دي.

خو که هغوی پر تا فشار راولي چې ته له ما سره داسې څه شریک کړې چې تا ته د هغه معلومات نه وي، نو د هغو خبره هېڅکله مه منه، په دنیا کې له هغو سره غوره ملتیا کوه خو پیروي د هغه چا د لارې وکړه چې هغه زما لوري ته رجوع کړې ده، بیا ستاسو ټولو راګرځېدل همدا زما لوري ته دي. په هغه وخت کې به زه تاسې ته دروښیم چې تاسو څه عمل کاوه.

ای زویه! یوشی (نیکي یا بدي) که د اوري د دانې په اندازه هم وي او په کومه لویه تیږه یا په اسمانونو او ځمکو کې پټه شوې وي، الله ﷻ به هغه راوباسي. الله ﷻ ښه لیدونکی (باریک بین) او باخبره دی.

**تفسیر**

**لقمان څوک دی؟**

الله تعالی په خپل کتاب کې موږ ته خبر راکړی چې لقمان (علیه السلام) د الله ﷻ حکیم بنده وو چې په وینا او کړووړو کې یې د الله ﷻ له ورکړې حکمت څخه ګټه اخیستله او دا علم او حکمت د لقمان(علیه السلام) د ایمان د ترقۍ او د خپل پروردګار د ذکر او شکر د زیاتیدو لامل ګرځیدلی و. همدارنګه لقمان علیه السلام له دې علم او حکمت څخه په استفادې سره نور خلک د الله ﷻ لوري ته رابلل او هغوی ته یې پند او نصیحت کاوه چې تر ټولو د مخه یې خپل پندونه او نصیحتونه خپل زوی ته متوجه کړل چې د نوم یادونه یې نه ده شوې. همدارنګه قرآن کریم د لقمان علیه السلام د ژوند د څرنګوالي په اړه په تفصیل بیان نه دی کړی وو او موږ د ده د ژوند په هکله نه پوهېږو او دا معلومات هم نه لرو چې آیا لقمان علیه السلام د انبیاوو له جملې څخه دی او که یوازې یو مؤمن حکیم او نصیحت کوونکی و، نو د لقمان علیه السلام په هکله ښه دا ده چې د قرآن کریم په بیان بسنه او اکتفاء وکړو.

**شرک تر ټولو ډېر ناوړه ظلم دی**

د قرآن کریم دغه مبارک آیت د حکایت په توګه، خپل زوی ته د حضرت لقمان حکیم نصیحت په ډېرو لوړو مفاهیمو او معانیو سره بیان کړی دی. لقمان حکیم خپل زوی ته په توحید او د یو

الله ﷻ په عبادت کولو امر کړی او له شرک او د الله ﷻ له عبادت څخه پرته د نورو له عبادت څخه یې ویرولی دی او استدلال کوي چې شرک لوی ظلم او ستره گناه ده.
ای بچیه! هیڅکله له الله ﷻ سره څوک شریک مه نیسه، ځکه شرک ډېر لوی ظلم دی.
پیغمبر ﷺ هم د لقمان علیه السلام د وینا په استناد شرک ډېر ناوړه ظلم معرفي کړی دی.
د عبدالله بن مسعود رضی الله عنه څخه روایت شوی چې فرمایلي یې دي کله چې د الله ﷻ دا وینا نازله شوه ﴿ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَلَمۡ يَلۡبِسُوٓاْ إِيمَٰنَهُم بِظُلۡمٍ أُوْلَٰٓئِكَ لَهُمُ ٱلۡأَمۡنُ﴾ [الانعام: آية: ۸۲].
یعنې: په حقیقت کې خو امنیت د هماغو کسانو لپاره دی او هم هغوی پر سمه لاره برابر دي چې ایمان یې راوړی او خپل ایمان یې په ظلم نه دی ملوث کړی.
صحابه کرامو د دې آیت دروندوالی او سختوالی درک کړ او د پیغمبر ﷺ په حضور کې یې داسې عرض وکړ چې ای د الله رسوله! چا له موږ څخه پر خپل نفس ظلم نه دی کړی؟ نبي کریم ﷺ وفرمایل: موضوع داسې نه ده، لکه: چې تاسو گمان کړی دی بلکې دلته له ظلم څخه شرک عبارت دی، آیا د لقمان وینا مو خپل زوی ته نه ده اورېدلې چې هغه ورته داسې نصیحت وکړ: ﴿ لَا تُشۡرِكۡ بِٱللَّهِۖ إِنَّ ٱلشِّرۡكَ لَظُلۡمٌ عَظِيمٞ ﴾.
یعنې: له الله سره شریک مه نیسه، بیشکه چې شرک ډېر لوی ظلم دی.

**له مور او پلار سره نیکي**

وروسته له دې چې الله پاک د شرک د تحریم په اړه د لقمان علیه السلام نصیحت خپل زوی ته بیان کړ، انسان ته یې د مور او پلار د حقوقو په هکله پند او نصیحت پیل کړ.
د مور او پلار په هکله انسان ته پند او نصیحت دا دی چې له هغوی سره نیکي وکړي، اطاعت او پیروي یې پر ځان لازم او حقوق یې ادا کړي، په ځانگړې توگه د مور حقوق، چې له زوی سره یې ستونزې گاللې دي، هو! مور ځکه پر زوی (اولاد) ډېر زیات حقوق لري چې دی یې په ډېر تکلیف سره په گېډه گرځولی او د توان او طاقت نه پورته ډېرې ستونزې یې د حمل، زېږون، شیدې ورکولو او له شیدو بېلولو وروسته نورو مرحلو کې زغملې او گاللې دي.
الله تعالی مؤمن انسان ته امر کړی چې خپل پروردگار ته د هغو نعمتونو په مقابل کې چې په ده یې پیرزو کړي شکر وباسي او همدارنگه د مور او پلار سره ښیگڼه او د هغوی مننه وکړي چې د ده پالنه او روزنه یې کړې ده او مور او پلار له الله ﷻ څخه وروسته ده ته د احسان او مهربانۍ سرچینه ده.

### د مور او پلار پیروي د الله ﷻ په پیروۍ پورې تړاو لري

ددې لوست مبارک آیت همدارنګه حکم کړی دی چې د مور او پلار اطاعت او پیروي مطلقه نه ده بلکې د الله تعالی له پیروۍ سره تړلې ده. کله چې مور او پلار د الله ﷻ په نافرمانۍ امر وکړي، نو پیروي یې ساقطیږي، په دې معنا چې کله مور او پلار خپل زوی ته د الله ﷻ په نافرمانۍ او د الله ﷻ سره په شریک نیولو امر وکړي او کوښښ وکړي چې خپل زوی کفر ته وهڅوي، نو په دې صورت کې پر زوی لازمه ده چې د هغوی د امر اطاعت ونه کړي، ځکه د مخلوق پیروي او امر منل د الله ﷻ د نافرمانۍ په صورت کې جواز نه لري.

هو! د الله ﷻ د نافرمانۍ په صورت کې د مور او پلار پیروي او امر منل نشته، خو بیاهم زوی مکلف دی چې د دنیا په ژوندانه کې له هغو سره نیکه کړنه ولري او له هغو سره نیکي او احسان وکړي. همدارنګه پر اولاد لازمه ده چې د حق لاره غوره کړي او له نیکو او صالحو مومنانو سره یوځای ګام پورته کړي او پدې وپوهیږي چې د ټولو مخلوقاتو او خلکو ستنیدنه د قیامت په ورځ د الله ﷻ په لوري ده، ترڅو د نیک عمل خاوند ته د نیک عمل په بدل کې نیکه بدله او بد عمله ته د ناوړه عمل په بدل کې سزا ورکړي.

بیا قرآنی آیتونه د حضرت لقمان علیه السلام پند او نصیحت ته ادامه ورکوي چې خپل زوی ته یې د الله ﷻ د کامل علم په هکله خبر ورکړی او ورته وایي چې الله ﷻ په هر هغه څه چې په آسمانونو او ځمکو کې دي خبر دی، برابره ده که هغه شی وړوکی وي او یا لوی. همدارنګه د حضرت لقمان علیه السلام له ژبې څخه یې خپل زوی ته خبر ورکړی چې نیکي او بدي که هرڅومره وړه هم وي الله ﷻ په هغې خبر او عالم دی، حتی که د اوري د دانې په اندازه وړه او کم وزنه وي، د ځمکې په تل یا د غټې تیږې په منځ کې پټه شوې وي او یا د آسمانونو په لېرو کنارو او څنډو کې ځای په ځای شوې وي، الله تعالی پرې خبر او عالم دی او د قیامت په ورځ یې خاوند د محاسبې لپاره حاضرولی شي.

**فعالیت**

د اسراء سورت هغه آیت چې په ځمکه باندې په تکبر سره تلل منع کوي په خپلو کتابچو کې ولیکئ او بیا دا څرګنده کړئ چې دغه آیت د دې سورت (لقمان) له اتلسم آیت سره څه ورته والی لري.

### د لوست ګټې او لارښوونې

له دې مبارکو آیتونو څخه ځینې ګټې او لارښوونې ترلاسه کېږي چې په لاندې ډول دي:

❖ پلار باید د خپلو اولادونو په پالنه او روزنه کې له همت څخه کار واخلي او له هغوی څخه خپل پند او نصیحت ونه سپموي او هغوی په سالمه عقیده او غورو اخلاقو وروزي.

- له الله جل جلاله سره شریک نیول ډېر لوی ظلم دی.
- د مور او پلار سره نیکي او احسان د اسلام له بنسټونو او اساساتو څخه دی چې پر الله تعالی له ایمان راوړلو او د هغه له عبادت کولو څخه وروسته ذکر شوی دی.
- پر انسان لازم دي چې له هغه چا سره نیکي وکړي چې له ده سره یې نیکي کړې وي، البته مور او پلار تر ټولو کسانو لومړۍ مرتبه لري.
- د مور او پلار پیروي او امر منل د الله جل جلاله په اطاعت پورې مقیده ده، ځکه د مخلوق پیروي او امر منل د خالق په نافرمانۍ کې ناروا ده.
- د مور او پلار سره ښه تعامل او ناسته ولاړه واجب ده، ان تر دې که چېرې هغوی کافر هم وي.
- الله جل جلاله ډېر عالم ذات دی، علم یې هرڅه ته شامل دی او هېڅ شی د الله جل جلاله له علم څخه پټ نه پاتې کېږي.




۱- د قرآنی آیتونو په رڼا کې د لقمان حکیم په هکله خپل معلومات څرګند کړئ.

۲- ولې الله تعالی د مور او پلار سره نیکي په خپل عبادت پسې ترلې، ذکر کړې ده؟

۳- د دې الهي وینا: ﴿ حَمَلَتْهُ أُمُّهُ وَهْنًا عَلَىٰ وَهْنٍ وَفِصَالُهُ فِي عَامَيْنِ ﴾ معنا څه ده؟

۴- د مور او پلار پیروي او امر منل څه وخت واجب او په کوم حالت کې حرام دي؟ او کله چې د مور او پلار پیروي کول حرام شي، نو اولاد به له هغوی سره څرنګه تعامل کوي؟

## د لقمان حکیم نصیحتونه خپل زوی ته (٢)

﴿يَٰبُنَيَّ أَقِمِ ٱلصَّلَوٰةَ وَأۡمُرۡ بِٱلۡمَعۡرُوفِ وَٱنۡهَ عَنِ ٱلۡمُنكَرِ وَٱصۡبِرۡ عَلَىٰ مَآ أَصَابَكَۖ إِنَّ ذَٰلِكَ مِنۡ عَزۡمِ ٱلۡأُمُورِ ۞ وَلَا تُصَعِّرۡ خَدَّكَ لِلنَّاسِ وَلَا تَمۡشِ فِي ٱلۡأَرۡضِ مَرَحًاۖ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ كُلَّ مُخۡتَالٖ فَخُورٖ ۞ وَٱقۡصِدۡ فِي مَشۡيِكَ وَٱغۡضُضۡ مِن صَوۡتِكَۚ إِنَّ أَنكَرَ ٱلۡأَصۡوَٰتِ لَصَوۡتُ ٱلۡحَمِيرِ ۞ أَلَمۡ تَرَوۡاْ أَنَّ ٱللَّهَ سَخَّرَ لَكُم مَّا فِي ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَمَا فِي ٱلۡأَرۡضِ وَأَسۡبَغَ عَلَيۡكُمۡ نِعَمَهُۥ ظَٰهِرَةٗ وَبَاطِنَةٗۗ وَمِنَ ٱلنَّاسِ مَن يُجَٰدِلُ فِي ٱللَّهِ بِغَيۡرِ عِلۡمٖ وَلَا هُدٗى وَلَا كِتَٰبٖ مُّنِيرٖ﴾ [لقمان:١٧-٢٠]

**د کلمو او جملو معناوې**

عَزۡمِ ٱلۡأُمُورِ: لوی او مهم کارونه.

وَلَا تُصَعِّرۡ خَدَّكَ: د تکبر او تحقیر په نیت خپل مخ له خلکو مه گرځوه.

مَرَحًاۖ: په فخرو او غرور.

مُخۡتَالٖ فَخُورٖ: تکبر کوونکی، پر ځان مین او ویاړ کوونکی.

وَٱقۡصِدۡ فِي مَشۡيِكَ: په خپل تگ کې منځنی حال غوره کړه.

وَٱغۡضُضۡ مِن صَوۡتِكَۚ: خپل غږ ټیټ کړه.

وَأَسۡبَغَ: بشپړ او کامل یې کړل.

ظَٰهِرَةٗ وَبَاطِنَةٗۗ: ښکاره او پټ.

**ژباړه**

ای زما زویه! لمونځ قایم کړه، په نیکۍ امر وکړه، له بدۍ څخه منع وکړه او (که په دې لار کې هر مصیبت درباندې راشي پر هغه صبر وکړه، بیشکه دا له مهمو کارونو څخه دی، (چې پر هغو ډېر تاکید شوی دی). او له خلکو سره په مخ اړولو خبرې مه کوه، پر ځمکه په ډېر خیال او کبر مه ځه! الله ﷻ هېڅ یو متکبر، په ځان مین او ویاړ ښکاره کوونکی انسان نه خوښوي. په خپل تګ کې منځنی حال (میانه روي) غوره کړه او خپل غږ ټیټ کړه، بیشکه چې له ټولو آوازونو څخه ډېر بد آواز د خرو دی. آیا تاسې نه وینئ چې الله ﷻ د آسمانونو او ځمکې ټول شیان ستاسې لپاره مسخر (تابع) کړي دي او خپل ښکاره او پټ نعمتونه یې پر تاسې تمام کړي دي؟ (خو حال دا دی چې) له انسانانو څخه ځینې خلک شته دي چې پرته له کومې پوهې، هدایت او روښنايي ښودونکي کتاب څخه د الله په هکله شخړې کوي.

**تفسیر**

**د خیر په لار کې صبر او استقامت**

په مخکینیو آیتونو کې په الله ﷻ باندې د ایمان راوړلو، له هغه سره د شریک نه نیولو، له مور او پلار سره د نیکي کولو او د الله ﷻ پر معصیت له امر کولو پرته د هغوی د اوامرو منل، د لقمان علیه السلام د نصیحتونو په ترڅ کې چې خپل زوی ته یې کړي دي بیان شول او ددې لوست په آیتونو کې هغه خپل زوی ته د الله ﷻ په عبادت، په نیکو اعمالو او په دنیوي ژوند کې د صبر او استقامت په غوره کولو نصیحت کوي او داسې فرمایي: ای بچیه! لمونځ قایموه په نیکیو امر او له بدیو منع کوه او په هغه څه چې په دې کار کې درته رسېږي پر هغه صبر کوه چې دا په دنیوي چارو کې د عزت او ثبات له ښښو څخه دي.

د لمانځه قایمول په دې معنا دی چې لمونځ په خالص نیت د فرایضو، واجباتو، سنتو، ادابو او وختونو په مراعاتولو سره ادا شي، بیا لقمان حکیم له خپل زوی څخه غواړي چې خلکو ته په نیکیو امر وکړي او له بدیو څخه یې منع کړي. څرنګه چې داعي د دعوت په لار کې له ستونزو او ربړونو سره مخ کېږي، نو ځکه لقمان علیه السلام خپل زوی ته نصیحت کوي چې د دې مسؤولیت د ادا کولو لپاره چمتو شي، په دې هکله له سستۍ او ناراستۍ څخه کار وانخلي ځکه د لمانځه ادا کول، په نیکیو امر او له بدیو څخه ژغورنه او په دې لار کې صبر او حوصله له خورا مهمو کارونو څخه دي چې الله تعالی پر هغو امر کړی دی.

بیا لقمان حکیم خپل زوی د غرور او کبر څخه منع کوي او داسې ورته وایي: ای بچیه! کله چې څوک خبرې درسره کوي یا ته ورسره خبرې کوې له هغوی څخه خپل مخ مه اړوه، بلکې عاجزي، تواضع او موسکا غوره کړه.

همدارنګه په لاره تللو کې د تکبر او وياړ څخه ځان ساته، ځکه الله ﷻ متکبر انسان نه خوښوي بلکې په لاره تللو کې د اعتدال اړخ غوره کوه. الله ﷻ هغه لاره تګ خوښوي چې په ساده ګۍ ، عاجزۍ او ميانه روۍ سره وي، لکه څنګه چې الله تعالی د فرقان سورت په ٦٣ آيت کې فرمايي: ﴿ وَعِبَادُ ٱلرَّحْمَٰنِ ٱلَّذِينَ يَمْشُونَ عَلَى ٱلْأَرْضِ هَوْنًا... ﴾
او د الله خاص بندګان هغه دي چې په ځمکه کې په سادګۍ او عاجزۍ روان وي. مطلب دا دی چې په لاره تللو کې تقوی او خاکساري څرګنده کړي نه ډېر سست روان وي او نه په ټوپونو، چې انسان پرې بې وقاره معلومېږي.

### د خبرو کولو آداب

لقمان حکيم خپل زوی ته د نصيحتونو په ترڅ کې د خبرو کولو آداب هم ښيي او ورته وايي چې د خبرو کولو په وخت کې مه خپل آواز دومره ټيټوه چې وانه وريدل شي او مه په ډېر لوړ آواز خبرې کوه ځکه له حد او اندازې څخه آواز جګول اوريدونکي ته آزار ورکوي او په غرور او بې عقلۍ دلالت کوي. نو له دې کبله يې له ضرورت څخه پرته د غږ جګيدل بد معرفي کړی او د خره له آواز سره يې تشبيه کړی دی چې د خره غږ په ټولو غږونو کې ډېر بد دی.
ابو هريره ﷺ روايت کړی چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي:«إِذَا سَمِعْتُمْ صِيَاحَ الدِّيَكَةِ فَسَلُوا اللَّهَ تَعَالَى مِنْ فَضْلِهِ فَإِنَّهَا رَأَتْ مَلَكًا وَإِذَا سَمِعْتُمْ نَهِيقَ الْحِمَارِ فَتَعَوَّذُوا بِاللَّهِ مِنَ الشَّيْطَانِ فَإِنَّهَا رَأَتْ شَيْطَانًا».
يعني کله مو چې د چرګ غږ واوريد، نو د الله ﷻ فضل او احسان وغواړئ، ځکه چرګ پرښته ليدلې ده او که مو د خره غږ واوريد، نو له شيطان څخه پناه وغواړئ، ځکه ده شيطان ليدلی دی.
بيا الله تعالی انسانانو ته د هغو نعمتونو چې پر دوی يې پيرزو کړيدي يادونه کوي او دوی ته دا ورياداوي چې الله تعالی ټول هغه څه چې په آسمانونو کې دي لکه: لمر، سپوږمۍ، ستوري او څه چې په ځمکو کې دي، لکه: اوبه، بحرونه، سيندونه، مېوې، زراعتي پيداوار او داسې نور انسانانو ته مسخر کړي او نور محسوس او ظاهري نعمتونه چې په خپلو جسمونو او مالونو کې يې ګورئ پيرزو کړي دي، همدارنګه معنوي نعمتونه، لکه: اسلام، علم، يقين، رضايت، نيکمرغي او نور بې شمېره نعمتونه يې دوی ته وربښلي دي، نو دا ټول نعمتونه چې انسانان يې په خپلو نفسونو، ځمکه او خپل چاپيريال او آسمانونو کې ګوري د دې غوښتونکي دي چې بايد په مقابل کې يې د الله ﷻ شکر ادا کړي او ناشکري ونه کړي. په انسان لازمه ده چې د الله ﷻ عبادت وکړي او نافرماني يې ونه کړي.
هو! ډېر انسانان شته چې د دې نعمتونو ناشکري کوي، د مؤمنانو سره په ناحقه جګړې کوي او د الله تعالی سره شريک نيسي، په داسې حال کې چې نه دليل او برهان لري او نه کتاب او لارښود.

**فعالیت**

خپل زوی ته، د لقمان حکیم هغه نصیحتونه چې په دې لوست کې مو ولوستل په لنډه توگه بیان کړئ.

## د لوست گټې او لارښوونې

له دې آیتونو څخه ځینې گټې او لارښوونې ترلاسه کېږي چې په لاندې ډول دي:

۱- مسلمان مسؤولیت لري چې د خپلو مسلمانو ورونو په مقابل کې د امر بالمعروف او نهې عن المنکر دیني وجیبه په سمه توگه ترسره کړي.

۲- مسلمانان چې د ستونزو او ناخوالو پر وړاندې له صبر او زغم څخه کار اخلي دا د هغوی له ډېرو سترو صفاتو څخه گڼل کېږي، او دا صفت د مؤمن داسې زیرمه ده چې د دعوت او اصلاح د مسؤولیت په ترسره کولو کې ورسره مرسته کوي.

۳- متکبر او ځان ستر گڼونکی انسان هم د الله ﷻ په وړاندې د قهر او غوسې وړ دی اوهم د خلکو په منځ کې منفور او سپک دی.

۴- مسلمان باید د مسلمان ورور سره په ښو اخلاقو، خوشحالۍ او پراخ تندې مخامخ شي.

۵- د الله ﷻ په نزد ښه او مناسب تگ متوازن او درمیانه تگ دی. ځکه سستي او تېزتگ دواړه د وقار او عزت منافي دي.

۶- مسلمان باید له اندازې څخه زیات خپل غږ لوړ نه کړي، ځکه ښه آواز هغه دی چې د ورو او جهر په منځ کې وي.

۷- الله تعالی د آدم علیه السلام اولادې لپاره اسمانونه او ځمکې مسخر گرځولي دي او د آدم علیه السلام اولاده یې د خپل عبادت لپاره پیدا کړې ده. الهي نعمتونه د انسانانو لپاره ډېر او بې شمېره دي، نو په انسانانو لازمه ده چې د الله ﷻ د ظاهري او معنوي نعمتونو شکر ادا کړي.




۱- د عزم الامور معنا څه ده؟ او کوم شیان چې مبارک آیت په عزم الامور یاد کړي دي، هغه کوم دي؟

۲- له درمیانه او معتدل تگ څخه مطلب څه شی دی، په دې هکله په یوه بل قرآني آیت استدلال وکړئ؟

۳- دا الهي وینا ﴿ وَٱغۡضُضۡ مِن صَوۡتِكَۚ ﴾ معنا کړئ، د الله ﷻ په نزد د غږ او آواز ښه صفتونه کوم دي؟

۴- د خره آواز ولې د اللهﷻ په نزد بد او مکروه دی؟

۵- د الله ﷻ څلور ظاهري او څلور باطني نعمتونه د بنده گانو لپاره بیان کړئ؟

## له بدګمانۍ ، غیبت او عیب پلټلو څخه ځان ژغورنه

﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱجۡتَنِبُواْ كَثِيرٗا مِّنَ ٱلظَّنِّ إِنَّ بَعۡضَ ٱلظَّنِّ إِثۡمٞۖ وَلَا تَجَسَّسُواْ وَلَا يَغۡتَب بَّعۡضُكُم بَعۡضًاۚ أَيُحِبُّ أَحَدُكُمۡ أَن يَأۡكُلَ لَحۡمَ أَخِيهِ مَيۡتٗا فَكَرِهۡتُمُوهُۚ وَٱتَّقُواْ ٱللَّهَۚ إِنَّ ٱللَّهَ تَوَّابٞ رَّحِيمٞ ۞ يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ إِنَّا خَلَقۡنَٰكُم مِّن ذَكَرٖ وَأُنثَىٰ وَجَعَلۡنَٰكُمۡ شُعُوبٗا وَقَبَآئِلَ لِتَعَارَفُوٓاْۚ إِنَّ أَكۡرَمَكُمۡ عِندَ ٱللَّهِ أَتۡقَىٰكُمۡۚ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٞ﴾ [الحجرات: ۱۲- ۱۳]

**د کلمو او جملو معناوې**

إِنَّ بَعۡضَ ٱلظَّنِّ إِثۡمٞۖ: بیشکه ځینې ګمانونه ګناه ده.

وَلَا تَجَسَّسُواْ : او د نورو عیبونه مه پلټئ.

وَلَا يَغۡتَب بَّعۡضُكُم بَعۡضًاۚ: او غیبت دې نه کوي ځینې ستاسې د ځینو نورو.

خَبِيرٞ: په هر څه خبر دی.

شُعُوبٗا: (جمع د شعب، خیلونه او قومونه، د خلکو لویه ډله چې واحد اصل ته منسوبه وي).

لِتَعَارَفُوٓاْ: ترڅو یو او بل وپیژنئ او خپل پیوند وساتئ.

**ژباړه**

ای مؤمنانو! له ډېرو ګمانونو کولو نه ډډه وکړئ بیشکه ځینې ګمانونه ګناه وي، د چا پټ عیبونه مه لټوئ او له تاسې نه دې څوک د چا غیبت نه کوي، آیا په تاسې کې داسې څوک شته چې د خپل مړ ورور غوښې خوړل خوښ کړي، نو تاسو په خپله د دې نه کرکه کوئ، له الله ﷻ نه ووېرېږئ، الله ﷻ ډېر ښه توبه قبلوونکی او خورا مهربان دی. ای خلکو! موږ تاسې له یوه نارینه او ښځې څخه پیداکړئ او بیا مو تاسې قومونه او قبیلې وګرځولئ ترڅو تاسې یو تر بله سره وپیژنئ، په حقیقت کې

د الله ﷻ په نزد له تاسې نه تر ټولو زيات عزتمن هغه څوک دی چې په تاسې کې تر ټولو زيات پرهيزګاروي بيشکه اللهﷻ پر هرڅه پوهېدونکی او باخبره دی.

**تفسير**

**د بشر ترمنځ مساوات او برابري**

د دې لوست په مبارکو آيتونو کې اخلاقي او ټولنيز موضوعات بيانېږي چې ټولنه له کړکې، کمزورۍ او دښمنۍ څخه ژغوري. په دې آيتونو کې الله تعالی د بشريت په اصل ماده کې مساوات او برابري تثبيتوي او ټينګار پرې کوي او د بهترۍ او غوره والي معيار يوازې تقوی او نيک عمل معرفي کوي.

الله تعالی مؤمنانو ته خطاب کوي او هغوی له ډېرو ګمانونو څخه چې د هغوی په زړونو کې د وسوسې لامل ګرځي، منع کوي. دغه مبارک آيتونه بيانوي چې ډېر داسې ګمانونه د هغه چا په هکله چې ظاهر يې په خير، نيکۍ او امانت دلالت کوي، باطل او ناروا دي او د شيطان له وسوسو څخه دي چې انسان د ګناه او نافرمانۍ لور ته بيايي.

خو هغه بدکاران او فاسقان چې په څرګنده توګه فسق، فجور او ناوړه کړنې ترسره کوي، د هغوی په هکله بدګماني روا ده، ترڅو خلک له هغه څخه لرې واوسي او د کړو وړو پيروي يې ونه کړي، لکه: هغه کسان چې په عام محضر کې د بدکاره ښځو سره مجلسونه او ملتيا لري او يا په ښکاره او څرګنده توګه شراب او نور مخدر مواد استعمالوي او ګناهونه کوي.

**له بدګمانۍ څخه ځان ساتل**

عبدالله ابن عباسؓ د پورتني آيت په تفسير کې فرمايي: «نهى الله المؤمن ان يظن بالمؤمن إلا خيرا» يعنې الله ﷻ مؤمن له دې څخه منع کوي چې پر بل مؤمن له نيک ګمان څخه پرته بل ګمان وکړي.

ابو هريرهؓ روايت کوي چې رسول الله ﷺ فرمايلي دي: «إياكم و الظن، فإن الظن أكذب الحديث، و لا تجسسوا و لا تحسسوا، و لا تنافسوا، و لا تحاسدوا، و لاتباغضوا، ولا تدابروا، وكونوا عباد الله إخواناً» يعنې: له (بد) ګمان څخه ځانونه وژغورئ، ځکه (بد)ګمان ډېره دروغجنه خبره ده، جاسوسي مه کوئ، د نورو عيبونه مه څېړئ، په بدۍ کې له يو بل سره رقابت مه کوئ، له حسد څخه کار مه اخلئ، يو بل ته کينه مه ساتئ، له يو او بل څخه نفرت او لرېوالی مه غوره کوئ او د ورونو په شان ټول د الله ﷻ بنده ګان شئ.

**د غيبت او عيب پلټلو بدي او ناوړتوب**

دغو مبارکو قرآني آيتونو موږ له عيب پلټلو چې د نورو د رازونو ښکاره کول او د پردو برسيره کول دي، منع کړي يو، همدارنګه له غيبت څخه يې هم منع کړي يو.

**غيبت:** د يوه مسلمان ورور په هکله د هغه په غياب کې د داسې شي بيانول او يادول دي چې هغه ورځنې بد وړي. دغه مبارک آيت د غيبت ناوړتيا داسې تعبير او تصوير کړې ده چې ګواکې غيبت کوونکی د خپل مړه ورور غوښې خوري او دا داسې شی دی چې انساني نفس ورڅخه کرکه او نفرت لري او ځان ورڅخه ژغوري.

له ابو برزه اسلمي څخه روايت دی چې وايي: نبي کريم ﷺ يوه خطبه وړاندې کړه او ويې ويل: ای هغه ډلې چې په ژبه مو ايمان راوړی! خو ستاسو زړونو ته ايمان نه دی ننوتلی، د مسلمانانو پردې مه لوټوئ، يقيناً څوک چې د مسلمانانو پردې ښکاره کوي، الله پاک به هغه د خپل کور په دننه کې رسوا کړي.

**د تقوی پر بنسټ غوره والی**

دويم آيت انسانانو ته خطاب کوي او دا حقيقت ثابتوي چې الله تعالی انسانان له يوه سړي او يوې ښځې څخه پيدا کړي دي او د ټولو انسانانو اصل يو دی، نو ټول انسانان برابر دي. الله ﷻ له يوه سړي او ښځې څخه ملتونه او قبيلې پيداکړي دي، ترڅو په خپلو منځو کې پيژندګلوي او معرفت پيدا کړي، نه داچې ځينې په ځينو نورو ځان لوړ وګڼي او يا په خپلو کې جنګ او جګړې وکړي. بيا الله پاک د عزت معيار داسې ټاکي چې د خدای ﷻ په وړاندې تر ټولو زيات عزتمند هغه څوک دی چې تر ټولو زيات له خدايه وېرېدونکی وي.

دا مبارک آيت په دې الهي وينا ختم شوی چې فرمايي: ﴿ إِنَّ ٱللَّهَ عَلِيمٌ خَبِيرٌ ﴾ يعنې الله د خپلو بندګانو او مخلوقاتو په هکله ښه عالم او د دوی په احوالو ښه خبر دی.

په دې هکله ډېر صحيحه احاديث روايت شوي دي چې يو له هغو څخه د حضرت حذيفه رضي الله عنه حديث دی چې له رسول الله ﷺ څخه يې روايت کړی دی چې هغه فرمايي: تاسو ټول د آدم اولاده ياست او آدم له خاورې څخه پيدا شوی دی، بايد هېڅ قوم او ډله په خپل اصل او نسب فخر او وياړ ونه کړي او که نه خو د الله ﷻ په وړاندې به د جعلان[1] څخه هم سپک او حقير وي.

همدارنګه طبراني روايت کوي چې پيغمبر ﷺ د حج په موسم په منی کې د تشريق په ورځو کې په داسې حال کې چې په اوښ سپور و خطابه وړاندې کړه او ويې ويل: ای خلکو! خبر اوسئ چې ستاسو پروردګار يو دی، پلار مو يو دی. خبر اوسئ چې عربي ته پر عجمي او عجمي ته پر عربي، تور ته پر سره او سره ته پر تور هېڅ ډول لوړتيا او فضيلت نشته مګر په تقوی سره. آيا تاسو ته مې دين ورساوه؟ ټولو وويل هو، نو بيايې وفرمايل: حاضران دې غايبينو ته ورسوي.

د دې آيت، او نورو مبارکو آيتونو او نبوي احاديثو پر بنسټ هر ډول قومي، توکمي، سمتي او ژبنی تعصب حرام دی، مسلمانان مکلف دي چې د شرعي وجيبې په توګه د جاهلي تعصباتو له ټولو ډولونو سره مبارزه وکړي او دا ويجاړوونکې ټولنيزه ناروغي له ټولنې څخه ورکه کړي.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم د مبارک حديث پر بنسټ انسانان (د ږمنځې د غاښونو په څېر) سره برابر دي، هر څوک چې قومي، ژبني، نژادي او سمتي تعصبونو ته خلک رابلي په حقيقت کې د ناروا جاهلي عمل مرتکب شوی دی، دا ځکه چې د خوږ پيغمبرﷺ له وينا سره سم تعصب د جاهليت د زمانې له ناوړو خويونو څخه دی او په مبارک حديث کې د (ناولي او بد بويه) شي په نامه ياد شوی. پر دې اساس مسلمانان بايد دې خبرې ته متوجه وي چې تعصب د ايمان او اسلامي

---

۱- جعلان د جيم په کسره يوه وړه حشره ده چې د حيواناتو په خوشايو کې ژوند کوي او خوراک يې د حيواناتو نجاست دی او کله چې خوشبويي ورته ورسېږي نو مري.

شریعت سره په ټکر کې دی او حقیقي مومن هغه دی چې تل د هغو ناولو او بدبویه شیانو څخه چې د مسلمانانو تر منځ تفرقه رامنځته کوي او د مسلمانانو یووالي ته زیان رسوي، په کلکه ځان وساتي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

د دې لوست ګټې او لارښوونې په لنډه توګه بیانېږي:

- الله ﷻ غیبت حرام کړی او غیبت کوونکی او غیبت شوی یې داسې تمثیل کړی چې ګواکې غیبت کوونکی د غیبت شوي غوښه په داسې حال کې خوري چې هغه مړ وي.
- له بدګمانۍ څخه د ځان ژغورنې ضرورت، ځکه دی چې بدګماني یو ناروا کار دی.
- ټول خلک برابر دي او ټول له یوه اصل څخه پیدا شوي او په دوی کې د الله ﷻ په نزد ډېر غوره هغه دی چې ډېر پرهېزګار وي.
- د مبارک آیت پر بنسټ په قومونو او ژبو کې د تنوع موخه د انسانانو تر منځ پېژندګلوي ده، نه یو پر بل لویي او ویاړ کول. په حقیقت کې پېژندګلوي د تفاهم او مرستې لامل ګرځي. که مبارک آیت ته ښه ځیر شو، نو وینو چې همدا پېژندګلوي، تفاهم او مرسته د کورنیو، موسسو، ټولنیزو بنسټونو او بالآخره د تمدنونو اساس جوړوي.
- جاهلي تعصبونه په هره بڼه چې وي د اسلام له نظره حرام او مردود دي.
- د مسلمانانو تر منځ یووالی ساتل او د تفرقې او اختلاف له عواملو سره مبارزه کول د هر مسلمان شرعي او ایماني دنده ده.
- د خلکو پټو خبرو ته غوږ نیول، د شخصي لیکونو لوستل، ټلیفوني اړیکو ته په غلا غوږ نیول، د کورنیو او افرادو د پټو رازونو پلټنه او داسې نور تجسس بلل کېږي او شرعاً حرام دي.




- د مسلمان غیبت له څه شي سره تشبیه شوی دی؟
- د انسانانو ترمنځ د لوړتیا معیار او بنسټ څه دی؟
- د ګمان کولو څخه ولې منع شوې ده؟
- په مختلفو قبیلو او ډلو باندې د انسانانو د ویشل کېدو لامل څه دی؟
- آیا رنګ، توکم یا ژبه دانسانانو ترمنځ د لوړتیا معیار کېدای شي او که څوک یې معیار وګڼي د هغه په هکله څه حکم کولی شو؟
- د اسلام پیغمبرﷺ د حج په موسم کې د انسانانو د مساوات او برابرۍ اصل څه معرفي کړی دی؟




زده کوونکي دې د قرآن او حدیثو په رڼا کې د (اسلام او جاهلي تعصب) تر سرلیک لاندې شل کرښې مقاله ولیکي.

نولسم لوست

# کورونو ته د ننوتلو آداب

﴿ يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَدۡخُلُواْ بُيُوتًا غَيۡرَ بُيُوتِكُمۡ حَتَّىٰ تَسۡتَأۡنِسُواْ وَتُسَلِّمُواْ عَلَىٰٓ أَهۡلِهَاۚ ذَٰلِكُمۡ خَيۡرٞ لَّكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَذَكَّرُونَ ۝ فَإِن لَّمۡ تَجِدُواْ فِيهَآ أَحَدٗا فَلَا تَدۡخُلُوهَا حَتَّىٰ يُؤۡذَنَ لَكُمۡۖ وَإِن قِيلَ لَكُمُ ٱرۡجِعُواْ فَٱرۡجِعُواْۖ هُوَ أَزۡكَىٰ لَكُمۡۚ وَٱللَّهُ بِمَا تَعۡمَلُونَ عَلِيمٞ ۝ لَّيۡسَ عَلَيۡكُمۡ جُنَاحٌ أَن تَدۡخُلُواْ بُيُوتًا غَيۡرَ مَسۡكُونَةٖ فِيهَا مَتَٰعٞ لَّكُمۡۚ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ مَا تُبۡدُونَ وَمَا تَكۡتُمُونَ ﴾

[النور:۲۷-۲۹]

**د کلمو معناوي**

تَسۡتَأۡنِسُواْ: اجازه وغواړئ.

أَزۡكَىٰ: ډېر پاک او سوتره

جُنَاحٌ: گناه.

مَتَٰعٞ لَّكُمۡۚ: ستاسو د کار او گټې سامان وي.

**ژباړه**

ای مؤمنانو! له خپلو کورونو څخه پرته نورو کورونو ته تر هغه پورې مه ننوځئ، ترڅو چې اجازه تر لاسه نه کړئ او پر کورنۍ (اوسیدونکو) باندې یې سلام وانه چوئ، دا کړنلاره ستاسې لپاره ډېره ښه ده، ښايي چې تاسي پند واخلئ.

نو که هلته مو څوک ونه موندل، نو مه ننوځئ ترهغه چې تاسې ته اجازه ونه شي او که تاسې ته وويل شي چې بيرته وگرځئ، نو: بېرته ولاړ شئ، دا ستاسې لپاره ډېره پاکه کړنلاره ده او الله ﷻ ستاسو په کړنو ډېر ښه پوهېږي.

پر تاسې کوم باک (گناه) نشته چې هغو کورونو ته بې له اجازې ولاړ شئ (ننوځئ) چې هلته څوک نه اوسي او هلته ستاسې څه گټې او اړتیاوې پرتې وي او الله ښه پوهیږي پر هغه څه چې تاسې یې ښکاره کوئ او پر هغه څه چې تاسې یې پټوئ.

## تفسیر

### د استوگنځي یا کور محرمیت

په دې آیتونو کې کورونو ته د اجازې اخیستلو او داخلېدلو ادبونه بیان شوي، ترڅو د مسلمانانو د کورونو د پردو او رازونو ساتنه وشي، مبارک آیت لومړی مؤمنان د ایمان په صفت چې د اسلامي لارښوونو څخه د التزام، پیروۍ او اطاعت بیانوونکی دی مخاطب کړي دي او فرمایي، چې: پرته له خپلو کورونو څخه د نورو خلکو کورونو ته چې په هغو کې دوی اوسیږي، مه داخلیږئ، ترهغه چې د کور خاوند اجازه نه وي درکړې او ستاسو په ننوتلو راضي شوی نه وي، نو تاسو د هغه کور په اوسېدونکو سلام واچوئ، ځکه ستاسې په اجازه غوښتلو او پر اوسېدونکو یې د سلام په اچولو کې ډېر خیر او ښېگڼې نغښتې دي او دا تاسو ته امرونه او لارښوونې دي چې د هغو په غوښتنو عمل وکړئ او همیشه ورته توجه ولرئ.

که کله په کورونو کې څوک ونه مومئ چې تاسو ته د داخلیدو اجازه درکړي، نو بیاهم پرته له اجازې مه داخلیږئ، ځکه د اوسېدنې کورونه د حرمت او عزت لرونکي او د آرام او مطمئن ژوند کولو لپاره دي چې باید حرمت او عزت یې وساتل شي. کله چې کور والا له ستاسو څخه د بېرته گرځیدو غوښتنه وکړي باید پرته له ځنډه راوگرځئ او په داخلېدو ټینگار ونه کړئ، ځکه دا بیرته ستنېدل ستاسو لپاره ډېر پاک او غوره کار دی.

پوه شئ چې الله تعالی (چې په ټولو پټو شیانو خبر دی نو) ستاسو په عملونو (هم) پوهېږي، نو د الله ﷻ په امرونو او حکمونو عمل وکړئ ترڅو بری او د الله ﷻ رضا ترلاسه کړئ.

### له استوگنې څخه خالي کورونو ته د ننوتلو ادب

بیا قرآن کریم هغو کورونو او ځایونو ته د داخلېدلو احکام او آداب بیانوي چې په هغو کې کورنۍ ژوند نه لري، بلکې د اړو خلکو د استفادې لپاره تیار شوي وي، لکه: مدرسې، ښوونځي، هوټلونه، تجارتي خونې او داسې نور عمومي ځایونه چې د داخلېدلو آداب او شرطونه یې آسان او د اوسیدنې د کورونو په پرتله په دویمه درجه کې دي.

الله تعالی فرمایي: داسې کورونو او ځایونو ته (د روا استفادې لپاره) چې هلته یې د کار او گټې وړ سامانونه ایښي وي، پرته له اجازې داخلیدل روا دي، ځکه په عمومي توگه دارنگه کورونه او ځایونه د ټولو خلکو پر مخ پرانستي وي، خو بیا هم د آیت په پای کې مورږ ته لارښوونه کوي چې داسې

ځایونو ته داخلېدل او له هغو څخه ګټه اخېستل باید د ضرورت، ګټې او روا مصلحتونو مطابق ترسره شي او الله تعالی ستاسو په ښکاره او پټو نیتونو او مقصدونو ښه خبر دی چې آیا تاسو د مشروع او روا منفعت او مصلحت لپاره دې کورونو ته ننوځئ او که د خبرو ټولولو او د اسرارو او رازونو د پلټلو یا نورو ناوړه مقصدونو لپاره ؟!﴿ وَٱللَّهُ يَعۡلَمُ مَا تُبۡدُونَ وَمَا تَكۡتُمُونَ ﴾. یعنې: الله پاک په هغه څه چې تاسو یې ښکاره کوئ او په هغه څه چې تاسو یې پټوئ پوهېږي.

**کورونو ته د داخلېدلو ځینې آداب**

- درې ځله د اجازې غوښتنه، په داسې ترتیب چې د هر ځل اجازې په غوښتلو کې مناسبه زماني فاصله په نظر کې ونیول شي، ترڅو په کور کې اوسېدونکي د خپل مشغولیت او حاجت له حالت څخه فارغ شي.
- د دروازې ټکول یا د دروازې زنګ ته فشار ورکول او داسې نور د اجازې غوښتلو حیثیت لري چې نه ښایي له دریو ځلو زیات تکرار شي او نه ښایي د اجازې غوښتل یا پرله پسې زنګ وهل یا د دروازې ټکول د کور د اوسېدونکو د خپګان او نارامۍ لامل شي.
- کله چې له داخلېدونکي څخه د هغه د نوم پوښتنه وشي، د (زه یم) په کلمه باید بسنه ونشي بلکې خپل بشپړ نوم دې ورته ووایي ترڅو د کور اوسېدونکی یې وپیژني.
- داخلېدونکی سړی باید دروازې ته مخامخ ونه درېږي چې د دروازې د پرانستلو په وخت کې یې نظر په هغه شیانو ونه لګي چې د کور خلک یې نورو ته ښودل نه خوښوي، ځکه د اجازې غوښتلو له اساسي حکمتونو څخه یو حکمت دا دی چې د سترګو له نظر څخه مخنیوی وشي.

په یوه حدیث کې رسول الله ﷺ فرمایلي دي «إِنَّمَا جُعِلَ الاسْتِئْذَانُ مِنْ أَجْلِ الْبَصَرِ»[1]

یعنې: د اجازې غوښتنه د سترګو د نظر او لیدنې څخه د ژغورل کېدو له امله تاکل شوې ده.

- خپل کور ته د ننوتلو لپاره هم د اجازې غوښتنه ضروري ده، ځکه امکان لري په کور کې ښځینه میلمانه یا نور کسان وي او یا د کور خلک په داسې حالت کې وي چې نه خوښوي په هغه حالت کې یې څوک ووینې.
- عمومي ځایونو، هوټلونو او یا داسې نورو ځایونو ته داخلېدونکی باید د هغو ځایونو پر اوسېدونکو او موجودو خلکو سلام واچوي، ځکه په داسې ځایونو کې د اجازې غوښتنه نشته، خو سلام اچول نه ساقطېږي، بلکې واجب دي.
- د (السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته) د الفاظو مراعاتول، ځکه چې سلام ورکول د اسلام شعار او نښه ده او په ټولو وختونو کې مناسب او ضروري ده او په محبت، سلامتیا او دوستۍ دلالت کوي.

---

۱- السنن الصغری

**فعالیت**

زده کوونکي دې د اجازې غوښتلو او یا کور ته د داخلېدلو په هکله د ځینو ناوړو عاداتو او کړنو په اړه له یو بل سره بحث وکړي او د علاج لارې دې ورته ولټوي.

## د لوست ګټې او لارښوونې

د دې لوست له مبارکو آیتونو څخه لاندې ګټې او لارښوونې ترلاسه کېږي:

۱- هر څوک چې له خپل کور نه پرته د پردیو د استوګنې کورونو ته داخلیږي، پر هغه واجب ده چې اجازه وغواړي.

۲- د اجازې غوښتنې پر آدابو پابندي لازم ده، ځکه د داسې آدابو مراعاتول پر عالي اخلاقو او غوره آدابو دلالت کوي.

۳- که کله د کور اوسېدونکي، خپل کور ته، ستاسو له راتګ څخه معذرت وغواړي، باید خواشیني نشئ، ځکه انسانان ځانګړي حالتونه او ضرورتونه لري او کورونه د خاصو رازونو او حرمتونو لرونکي دي چې باید مراعات شي.

۴- عمومي ځایونو او محلونو، لکه: تجارتخانو، هوټلونو، رستورانونو او داسې نورو ته د داخلېدو لپاره اجازه غوښتنه ضروري نه ده.




۱- د لوست لومړي آیت له هغه چا څخه چې د استوګنې پردیو کورونو ته ننوځي دوه خبرې یا دوه کارونه غوښتي دي، دا دوه خبرې څرګندې کړئ؟

۲- کله چې ننوتونکی د کور د خاوند له لوري ونه منل شي او یا د هغه له ننوتلو څخه معذرت وغواړي، دغه مهال ننوتونکي ته څه په کار دي، په دلیل سره یې څرګند کړئ.

۳- کورته د ننوتلو اجازه څه وخت ساقطېږي، له دلیل سره یې بیان کړئ؟

۴- عمومي آبادیو ته ننوتل اجازې غوښتلو ته اړتیا نه لري، خو یو بل شی نه ساقطېږي، هغه څه دی؟

۵- د اجازې غوښتلو له آدابو څخه درې شیان ذکر کړئ؟

۶- هغه کلمه چې د سلام اچولو په وخت باید مراعات شي څه ده او ولې هغه کلمه د نورو کلمو په پرتله غوره ده؟




د خپلوانو، دوستانو، عمومي آبادیو او خپل کور ته د داخلېدو د آدابو په هکله یوه مقاله ولیکئ چې له شلو کرښو څخه کمه نه وي.

شلم لوست

# د شرابو او قمار وهلو حراموالی

﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلۡخَمۡرُ وَٱلۡمَيۡسِرُ وَٱلۡأَنصَابُ وَٱلۡأَزۡلَـٰمُ رِجۡسٞ مِّنۡ عَمَلِ ٱلشَّيۡطَـٰنِ فَٱجۡتَنِبُوهُ لَعَلَّكُمۡ تُفۡلِحُونَ ۞ إِنَّمَا يُرِيدُ ٱلشَّيۡطَـٰنُ أَن يُوقِعَ بَيۡنَكُمُ ٱلۡعَدَٰوَةَ وَٱلۡبَغۡضَآءَ فِي ٱلۡخَمۡرِ وَٱلۡمَيۡسِرِ وَيَصُدَّكُمۡ عَن ذِكۡرِ ٱللَّهِ وَعَنِ ٱلصَّلَوٰةِۖ فَهَلۡ أَنتُم مُّنتَهُونَ﴾ [المائدة: ۹۰- ۹۱]

**د کلمو معناوې**

ٱلۡمَيۡسِرُ: جواري (قمار).

ٱلۡأَنصَابُ: بتان، هغه تيږې چې مشرکانو يې عبادت کاوه.

ٱلۡأَزۡلَـٰمُ: د فال غشي، هغه غشي چې مشرکانو به د هغو په واسطه خپل بختونه آزمويل (ښه او بد فال يې پرې نيوه).

رِجۡسٞ: ناپاکي، پليتي او چټلي.

فَٱجۡتَنِبُوهُ: له هغه څخه ډډه وکړئ، ځان وژغورئ.

**ژباړه**

ای مؤمنانو! شراب، جواري (قمار)، (درول شوي) بتان او د فال نيولو غشي دا ټول ناولي او شيطاني کارونه دي له هغوی څخه ډډه وکړئ. هيله ده چې تاسې ته به بری درپه برخه شي.

بيشکه شيطان خو دا غواړي چې په شرابو او قمار سره ستاسې په منځ کې دښمني او کينه واچوي او تاسې د الله ﷻ له يادولو او لمانځه څخه منع کړي، نو آيا تاسې له دې چارو څخه لاس اخلئ؟

**تفسير**

شراب او قمار د بت پرستۍ په قطار کې:

په دې آیتونو کې الله تعالی مؤمنان د حرامو شیانو له ضررونو او ناوړو پایلو څخه ویرولي او هغوی ته یې امر کړی چې ځانونه ترې وژغوري.

د لومړي آیت د شان نزول په هکله په صحیح مسلم کې له سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه څخه روایت شوی دی چې هغه وویل: د قرآن کریم دغه آیت زما په باره کې نازل شوی دی، ویې ویل: زه د انصارو یوې ډلې ته ورغلم چې هغوی زه مېلمستیا ته بللی وم، په هغه وخت کې شراب څښل نه و حرام شوي.

نو زه په یوه باغ کې له دوی سره مېلمه شوم چې هلته کباب شوې غوښې او د شرابو کوزه ایښودل شوې وه. سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه وفرمایل: ما له دوی سره ډوډۍ او شراب وخوړل، بیا د مهاجرینو او انصارو خبره یاده شوه، ما وویل: مهاجرین له انصارو څخه غوره دي. په دې وخت کې د انصارو له ډلې څخه یوه تن د اوښ په هډوکي ووهلم او پوزه یې راته وینې کړه، زه د رسول الله صلی الله علیه وسلم حضور ته ورغلم او دا پېښه مې ورته وویله، نو دا آیت نازل شو: ﴿يَـٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلۡخَمۡرُ وَٱلۡمَيۡسِرُ ..﴾.

الله تعالی په دې آیتونو کې مؤمنان له څو شیانو څخه منع کړي دي:

۱- د شرابو له څښلو څخه چې عقل پټوي او د سالم فکر کولو مخه یې نیسي.

۲- الله جل جلاله له قمار وهلو څخه منع کړې ده چې د هغه له لارې پیسې او مالونه د بخت یا د تصادف له مخې لاس ته راځي او کومې هلې ځلې او زیار یې په ترلاسه کولو کې رول نه لري او نه هم انسانانو ته څه ګټه رسولی شي.

۳- الله پاک د بتانو له عبادت څخه منع کړي دي چې د جاهلیت د وخت مشرکانو به هغه د کعبې شاوخوا نصب کړي وو او د هغو په نومونو به یې د هغو په پښو کې قربانۍ کولې او په دې طریقه به یې په خپل ګومان الله جل جلاله ته نژدې والی حاصلاوه.

۴- همدارنګه الله تعالی له هغه غشو څخه منع کړې ده چې مشرکانو به د هغو په واسطه د غیبو خبرې کولې او دې ټولو شیانو ته یې پلیتي او چټلي ویلې ده چې سلیم نفسونه ورته رغبت نه لري او له هغو څخه کرکه او نفرت کوي، ځکه دا ټول کارونه د شیطان عملونه دي چې د انسان دښمن دی، بناء الله تعالی مؤمنانو ته امر کړی دی چې له دې شیانو څخه ډډه وکړي، ترڅو په دنیوي ژوندانه کې کامیاب او په آخرت کې له الهي نعمتونو څخه برخمن شي.

**د شرابو او جوارۍ (قمار) د حراموالي دلیلونه**

وروسته له دې چې قرآني آیتونو ډېر شیان منع او حرام وګرځول، په وروستني آیت کې یې بیا شراب او قمار ځانګړي کړل او د هغوی په حرمت یې ټینګار وکړ او د دې حرمت اسباب او دلایل یې بیان کړل.

دې مبارک آیت مؤمنان د شرابو او قمار له ناوړو پایلو څخه ویرولي او تاکید یې کړی دی چې شیطان د منکراتو په ښایسته کولو سره غواړي ستاسو ترمنځ دښمني او بدبیني پیدا کړي. ستاسو ترمنځ د دوستۍ اړیکې وشلوي او د شرابو او قمار په وسیله ستاسو په نفسونو کې کینې او دښمنۍ ژوندۍ کړي، ځکه کله چې شراب د شرابي پر عقل غلبه وکړي، نو د هغه د عقل او پوهې په سلامتۍ کې خلل رامنځته کوي او هغه دیته هڅوي چې د هغو کسانو په مقابل کې چې له ده سره یې نیکي کړې ده بدي وکړي او یا په خپلو خپلوانو تېری وکړي چې دا کار د خلکو ترمنځ د سختې دښمنۍ لامل ګرځي.
همدارنګه جوارګر ډېر وختونه خپل مال او پانګه د قمار په میدان کې له لاسه ورکوي، څرنګه چې انساني نفس له مال او سرمایې سره مینه لري، نو جوارګر د مال او سرمایې د بایللو په خاطر له هغه چا سره چې له ده څخه یې مال او سرمایه په جوارۍ کې ګټلې ده دښمني کوي او حتی کله یې وژنې ته هم اقدام کوي چې په دې سره په ټولنه کې د دښمنۍ، بدۍ او فتنې اور په شغلو راځي.

**د شرابو او جوارۍ (قمار) دیني او معنوي ضررونه**

هغه شیان چې مخکې ذکر شول د شرابو او قمار مادي او دنیوی ضررونه او فسادونه وو، خو د دې ترڅنګ شیطان هلې ځلې کوي چې د دې مفاسدو او پلیتیو په عملي کولو سره مسلمانان د الله ﷻ له ذکر او لمانځه څخه غافله او له الله ﷻ څخه یې لرې کړي، ځکه شراب څښونکی (شرابي) په دروغجنه نشه او د عقلي سلامتیا په زوال سره، د الله ﷻ د حکمونو له پیروۍ او د فرایضو او دیني مسؤولیتونو له ادا کولو څخه لرې کېږي، همدارنګه جوارګر له دې پلیتې او حرامې لارې څخه د سرمایې په حاصلولو او د روحي او دیني سالمې عاطفې د نشتوالي په سبب، نور د دیني وجایبو او مسؤولیتونو د ترسره کولو په فکر کې نه وي. چې په دې سره د الله ﷻ له عبادت او د هغه له تقرب څخه لرې کېږي.

**د شرابو او قمار صحي او اقتصادي زیانونه**

باید وپوهېږو چې شراب د روغتیا له نظره د انسان لپاره ډېر ناوړه، ضررناک او بدې پایلې لري. شراب د ډېرو خطرناکو ناروغیو لامل کېږي، د زړه او ځيګر ځینې ناروغۍ د شرابو د څښلو له امله منځته راځي.
قمار وګړو او ټولنې ته ډېر زیات زیانونه اړوي او ډېر ځلې د اقتصادي ستونزو او مشکلاتو لامل ګرځي. څرنګه چې قمار کوم سم اقتصادي بنسټ نه لري، ترڅو د وګړو او ټولنې په اقتصادي وده او د پیسو په چلن او دوران کې مرسته وکړي، نو ځکه یو ناوړه او ناسم کار بلل

کېږي. اسلام د فطرت دین او د الله له خوا رالېږل شوی نظام دی او ټول هغه شیان يې چې د انساني فطرت سره په ټکر کې دي حرام کړي. څرنګه چې شراب او قمار دواړه ضررناک او له انساني فطرت سره مخالف عملونه دي، نو ځکه اسلام هم حرام او ناروا بللي دي.

## د لوست ګټې او لارښوونې

د دې لوست له آیتونو څخه دا لاندې ګټې او لارښوونې ترلاسه کېږي.

- ❖ د قمار، شرابو، بتانو، غشو او نور هغو شیانو حراموالی چې په نامشروع لارو د مال او پانګې په ترلاسه کولو کې ورځنې استفاده کېږي.
- ❖ شیطان د انسان د ګمراه کولو لپاره د ډېرو لارو او چارو څخه کار اخلي، نو هوښیار انسان له دې لارو څخه ډډه کوي او ځان د شیطان په منګولو کې نه ایساروي.




۱. لاندې کلمې او مفردات معنا کړئ:

«المیسر، الأنصاب، الأزلام، رجس، جناح».

۲. له قرآني آیتونو څخه د لاندې چارو په اړه دلیل ذکرکړئ.

- ❖ د شرابو حرمت.
- ❖ د قمار حراموالی.
- ❖ شیطان په دې هڅه کې دی چې مسلمانانو ته زیان ورسوي.

۳. د شرابو مادي او معنوي تاوانونه بیان کړئ؟

۴. (جوارګر خپل ځان او ټولنې ته ضرر رسوي) دا مقوله شرحه کړئ.




د (شرابو او قمار) د ضررونو او مفاسدو په هکله یوه مقاله ولیکئ چې له دوو مخونو څخه کمه نه وي او په خپله مقاله کې له قرآني آیتونو او احادیثو څخه دلیلونه راوړئ.

یو ویشتم لوست

## په عدل او احسان امر کول

﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَأۡمُرُ بِٱلۡعَدۡلِ وَٱلۡإِحۡسَٰنِ وَإِيتَآيِٕ ذِي ٱلۡقُرۡبَىٰ وَيَنۡهَىٰ عَنِ ٱلۡفَحۡشَآءِ وَٱلۡمُنكَرِ وَٱلۡبَغۡيِۚ يَعِظُكُمۡ لَعَلَّكُمۡ تَذَكَّرُونَ ۝ وَأَوۡفُواْ بِعَهۡدِ ٱللَّهِ إِذَا عَٰهَدتُّمۡ وَلَا تَنقُضُواْ ٱلۡأَيۡمَٰنَ بَعۡدَ تَوۡكِيدِهَا وَقَدۡ جَعَلۡتُمُ ٱللَّهَ عَلَيۡكُمۡ كَفِيلًاۚ إِنَّ ٱللَّهَ يَعۡلَمُ مَا تَفۡعَلُونَ﴾ [النحل: ۹۰- ۹۱]

**د کلمو او جملو معناوې**

| | |
|---|---|
| اٱلۡعَدۡلِ: | انصاف ، د یوه شي ایښودل په خپل ځای کې. |
| ٱلۡإِحۡسَٰنِ: | ښیګڼه، په سمه توګه د یوه کار سرته رسول. |
| ٱلۡفَحۡشَآءِ: | بې حیایي، فاحش کارونه. |
| ٱلۡمُنكَرِ: | بدي، هغه چې شریعت بد ګڼلي دي. |
| ٱلۡبَغۡيِ: | تېری، ظلم. |
| لَا تَنقُضُواْ ٱلۡأَيۡمَٰنَ: | خپلې لوړې مه ماتوئ. قسمونه مه ماتوئ. |

**ژباړه**

بیشکه الله ﷻ د عدل، ښېګڼې او خپلوئ پالنې حکم کوي او له بدی، بی حیایی، زور ظلم څخه منع کوي، هغه تاسې ته نصیحت کوي، ترڅو تاسې عبرت واخلئ. د الله ﷻ ژمنه پوره کړئ که تاسې له هغه سره ژمنه کړې وي او خپلې لوړې له پخولو څخه وروسته مه ماتوئ چې کله تاسې الله ﷻ پر خپل ځان شاهد نیولی وي، الله ﷻ ستاسو په ټولو کړنو عالم دی.

**تفسیر**

**د امر بالمعروف او نهي عن المنکر په هکله تر ټولو جامع آیت**

الله تعالی مسلمانانو ته امر کوي چې: ای مسلمانانو! الله تعالی تاسوته امر کوي چې په خپلو معاملو کې په عدل او انصاف عمل وکړئ، همدارنګه تاسوته د احسان امر کوي چې خپل

کارونه او دندې په غور، توجه او ښه توګه ترسره کړئ. همدارنګه الله ﷻ تاسې ته امر کوي چې د خپلوانو سره صله رحمي او زړه سوی وکړئ، حقوق يې ادا او نيکي ورسره وکړئ او له محتاجانو سره مرسته وکړئ.
سره له دې چې صله رحمي يا خپلوي پالنه د احسان په ضمن کې داخله ده، خو په مستقله توګه يې ذکر کول د هغه په ارزښت او غوره والي دلالت کوي.
لکه څنګه چې دا آيتونه مسلمانانو ته خطاب کوي چې الله تعالی تاسو له فحشاوو څخه چې له ناوړو کړو وړو او بدو ويناوو څخه عبارت دي، منع کوي، همدارنګه الله تعالی تاسو پر نورو باندې له ظلم او د هغوی پر حقوقو له تېري کولو څخه هم منع کوي.
بيا قرآن کريم فرمايي: الله تعالی تاسو ته پند درکوي چې پند او عبرت واخلئ ﴿ يَعِظُكُمْ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُونَ ﴾ يعنې: الله تعالی تاسې ته د داسې چارو په هکله معلومات درکوي چې ستاسو ژوند ښايسته کوي او ګټې در رسوي ترڅو تاسې د الله ﷻ فضل او احسان در ياد کړئ.
ابن مسعود رضي الله عنه د دې مبارک آيت په هکله داسې فرمايلي دي چې (دا آيت په نيکيو د امر او له بديو څخه د منع په هکله) تر ټولو زيات جامع آيت دی.

**فعاليت:** زده کوونکي دې د ښوونکي تر لارښوونې لاندې د احسان او د هغه د ګټو په هکله د قرآني آيتونو په رڼا کې بحث او څېړنه وکړي.

**په ژمنه وفا کول**
الله تعالی د دې آيتونو له مخې مسلمانانو ته د وعدې ساتلو په هکله امر کړی دی.
**عهد:** د وعدې او ژمنې په معنا دی او د الله ﷻ وعده هغه ده چې له انسانانو څخه يې اخيستې ده، ترڅو د الله په عبادت او پيروۍ ژمن واوسي او موږ دا وعده او ژمنه د لمانځه په هر رکعت کې له الله ﷻ سره کوو او وايو (اياک نعبد) يعنې ای پروردګاره! موږ يوازې ستا عبادت کوو.
په دې آيت کې ټول هغه څه چې بايد په هغه وفا وشي داخلېږي، لکه: اسلامي احکام، د الله تعالی سره وعدې او ژمنې، له انسانانو سره وعدې او يا له خپل نفس سره وعده او په دې ترتيب د دې قرآني لفظ جامع والی ثابت او روښانه کېږي. الله ﷻ له ټولو پيغمبرانو او د هغو له پيروانو څخه ژمنه اخيستې ده چې د ده عبادت او پيروي وکړي.
په دې آيت کې الله ﷻ ته د وعدې منسوبول د وعدې د تاکيد او اهميت لپاره دي، نو کله چې انسان وعده او ژمنه پرځان لازمه کړي بايد په هغې وفا وکړي ﴿ وَلَا تَنقُضُواْ ٱلْأَيْمَـٰنَ

﴿بَعۡدَ تَوۡكِيدِهَا﴾ يعنې: د الله ﷻ په نامه چې لوړې کوئ هغه مه ماتوئ، ځکه د مؤکدو قسمونو ماتول د الله سره ژمنه ماتول ګڼل کېږي.

﴿إِنَّ ٱللَّهَ يَعۡلَمُ مَا تَفۡعَلُونَ﴾ يعنې: الله تعالی په وعدو، ژمنو او د هغو په ماتولو چې له ځانه په جوړو شويو حيلو او پلمو ترسره کېږي، باخبره دی او تاسو ته د خپلو کړو وړو مطابق سزا درکوي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

له پورتنيو آيتونو څخه لاندې ګټې ترلاسه کېږي:

- ❖ د عدل او احسان واجبوالی او د خپلوانو د حقوقو ادا کول.
- ❖ د هر ناوړه او بد عمل حراموالی چې شريعت او عقل هغه بد او ناخوښ وګڼي.
- ❖ د ظلم او د نورو په حقوقو د تېري کولو حراموالی.
- ❖ په وعده، ژمنه او قسم باندې د وفا واجبوالی.
- ❖ په ځان کې د دې حس او شعور ژوندي کول چې الله ﷻ د ټولو اعمالو څارونکی دی.




لاندينيو پوښتنو ته ځوابونه ورکړئ:

۱- (۹۰) آيت په دريو شيانو امر او له دريو شيانو څخه منع کړې ده. دا اوامر او نواهي څرګند کړئ؟

۲- ابن مسعود رضي الله عنه د دې آيت په هکله څه فرمايلي دي؟

۳- په دې مبارک آيت کې له وعدې څخه مراد څه دی او د وعدې نسبت الله ﷻ ته د څه شی افاده کوي؟

۴- دا لاندې کلمې څه معنا لري:

الاحسان – الفحشاء – الايمان.




په ژمنې باندې د وفا کولو او له خپلوانو سره د نيکۍ په هکله يوه مقاله وليکئ چې له لسو کرښو څخه کمه نه وي.

دوه ویشتم لوست:

## د مور او پلار حقوق

﴿وَقَضَىٰ رَبُّكَ أَلَّا تَعْبُدُوٓاْ إِلَّآ إِيَّاهُ وَبِٱلْوَٰلِدَيْنِ إِحْسَٰنًا ۚ إِمَّا يَبْلُغَنَّ عِندَكَ ٱلْكِبَرَ أَحَدُهُمَآ أَوْ كِلَاهُمَا فَلَا تَقُل لَّهُمَآ أُفٍّ وَلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُل لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيمًا ۞ وَٱخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ ٱلذُّلِّ مِنَ ٱلرَّحْمَةِ وَقُل رَّبِّ ٱرْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِى صَغِيرًا ۞ رَّبُّكُمْ أَعْلَمُ بِمَا فِى نُفُوسِكُمْ ۚ إِن تَكُونُواْ صَٰلِحِينَ فَإِنَّهُۥ كَانَ لِلْأَوَّٰبِينَ غَفُورًا﴾ [الإسراء:۲۳-۲۵]

**د کلمو او جملو معناوې**

قَضَىٰ: پرېکړه يې کړې ده، امر يې کړی او حکم يې کړی.

أُفٍّ: هغه اواز يا هغه تعبير چې د ربړتيا لپاره کارول کېږي.

لَا تَنْهَرْهُمَا: دوی مه رټه، دوی مه ځوروه.

وَٱخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ ٱلذُّلِّ: د دوی دواړو د خدمت لپاره خپل د تواضع وزر (اوږه) ټيټ کړه (ځان مهربانه او عاجزي کوونکی جوړ کړه).

لِلْأَوَّٰبِينَ: د الله ﷻ لوري ته رجوع کوونکو لپاره.

**ژباړه**

او ستا رب پرېکړه کړې ده چې تاسې د بل هيچا عبادت مه کوئ، مګر يوازې د هغه، له مور او پلار سره نيکي او ښه تعامل وکړئ، که له تا سره د هغو نه يو يا دواړه زړښت ته ورسېږي، نو هغه ته اف قدرې مه وايه او مه رټه دوی دواړه، بلکې له هغو سره په درناوي خبرې کوه او په نرمۍ او رحم سره د هغو په وړاندې مات غاړی اوسه او دا دعا کوه چې پروردګاره! پر دوی رحم وکړه، لکه: څنګه چې دوې له زړه سوي او خوا خوږۍ سره په ماشومتوب کې زه پاللی

وم. ستاسې رب ښه پوهېږي چې ستاسو په زړونو کې څه دي. که تاسې صالحان (نیکان) یاست، نو هغه د رجوع کوونکو لپاره ښنونکی دی.

**تفسیر**

**د الله په عبادت امر**

الله تعالی په دې آیتونو کې خپلو بندګانو ته یوازې په خپل عبادت امر کړی دی او د الله ﷻ امر د (قضی) په کلمه کې راغلی چې په ډېر تاکید دلالت کوي. یعنې الله ﷻ په غوڅه توګه حکم کړی چې پرته له هغه د بل چا عبادت ونه کړئ، ځکه ا لله ﷻ د ټولو خالق او پیدا کوونکی دی او یوازې هغه د عبادت مستحق دی، نو ټول امر خاص هغه الله ﷻ لره دی چې د کایناتو خالق او پالونکی دی.

**له مور او پلار سره په نیکۍ کولو امر**

وروسته له دې چې الله تعالی په خپله بنده ګۍ او عبادت امر کوي، سمدلاسه یې د مور او پلار سره په نیکۍ او احسان کولو هم امر کړی دی، ترڅو له هغوی سره د نیکۍ ارزښت او د هغوی لوړ مقام او منزلت څرګند شي، نو کله چې مور او پلار دواړه یا یو له دوی څخه د بوډاتوب او بیوسۍ عمر ته ورسیږي، نو په دغه وخت کې دې داسې کلمه یا لفظ د دوی په وړاندې استعمال نشي چې د دوی زړه پرې وځورېږي او یا دوی د خواشینۍ او خفګان احساس پرې وکړي مثلاً (اف) کلمه که څه هم دا وړه کلمه ده، خو د مور او پلار د رنځ او درد سبب ګرځي، نو د اسلام او قرآن له مخې مردوده او ناخوښه ده.

مبارک آیت د مور او پلار د بوډاتوب او بېوسۍ عمر خاص کړی، په داسې حال کې چې د دوی خدمت په ټولو حالتونو کې واجب دی، خو دا تخصیص په دې دلالت کوي چې دوی د بوډاتوب او بېوسۍ په حالت کې تر هر وخت زیات پاملرنې او خدمت ته ضرورت لري، نو الله ﷻ انسان ته امر کوي چې د دوی خدمت ته په عاجزۍ او نرمۍ ځان تیار کړه او په مهربانۍ او خاکسارۍ له دوی سره معامله کوه.

او الله تعالی له دوی سره د نیکې معاملې تعبیر د مرغه د وزرونو له راټيټولو سره تشبیه کړی دی ځکه کله چې خپل بچیان په غیږه کې رانیسي، نو خپل وزرونه ورته ټيټوي، همدارنګه کله چې وغواړي له هوا څخه ځمکې ته راټیټېږي، نو خپل وزرونه ښکته کوي نو دا د وزرونو ټيټول د مور او پلار سره د نیکۍ او احسان، نرمۍ او مهربانۍ له معاملې څخه کنایه ده، نه یوازې دا

بلکې الله ﷻ امر کړی چې انسان دې خپل مور او پلار ته دعا هم کوي او داسې دې وايي: ای زما پالونکيه! زما مور او پلار ته د خپل بې اندازې رحمت په سيوري کې ځای ورکړې، لکه: څنگه چې دوی د ماشومتوب په حالت کې په ما شفقت او مهرباني درلوده.

په دې دعا کې دې خبرې ته اشاره ده چې اولاد که په هره اندازه د مور او پلار په وړاندې وفادار او خدمت کوونکی اوسي بياهم نشي کولای چې د دوی حق ادا کړي، نو پردې اساس بايد له الله ﷻ څخه ورته د رحمت غوښتنه وکړي.

**د والدينو د عاق له گناه څخه د توبې تشويق**

**بيا الله تعالی فرمايي:** ﴿رَّبُّكُمۡ أَعۡلَمُ بِمَا فِي نُفُوسِكُمۡۚ إِن تَكُونُواْ صَٰلِحِينَ فَإِنَّهُۥ كَانَ لِلۡأَوَّٰبِينَ غَفُورٗا﴾

الله تعالی د خپلو مخلوقاتو په نفسونو چې د مور او پلار سره د نيکۍ او بدۍ په هکله وجود لري ښه باخبره دی، نو څوک چې له مور او پلار سره د نيکۍ او احسان اراده وکړي او له هغې کوتاهۍ او تقصير چې مخکې يې د دوی په وړاندې يا د نورو خلکو په وړاندې کړی دی، توبه وباسي، نو الله تعالی توبه قبلوونکی دی او الله ﷻ يې گناهونه په خپل فضل او مهربانۍ سره ببښي.

**فعاليت:** زده کوونکي دې دوه ډلې شي د مور او پلار د حقوقو په هکله دې خبرې وکړي. بيا دې يو يو تن د خپل گروپ په استازۍ د ټولگي مخې ته راشي او د بحث غوره مطالب دې په دريو دقيقو کې شرح کړي.

**د لوست گټې او لارښوونې**

له پورتنيو آيتونو څخه لاندې گټې لاسته راځي:

- د مور او پلار سره د نيکۍ واجبوالی او د دوی په وړاندې عاجزي او مهرباني، خصوصاً د هغو د بوډاتوب په حالت کې.
- دا چې مور او پلار لوی حقوق لري، نو له دې امله الله ﷻ د خپل حق څخه وروسته د دوی حق ذکر کړی دی.

❖ د هغو الفاظو مراعاتول چې اولاد یې د والدینو په وړاندې وایي. باید هېڅ داسې کلمه په ژبه استعمال نشي چې د دوی د رنځ او تکلیف باعث وګرځي، که څه هم پرته له قصده وي.

❖ د مور او پلار لپاره دعا، د دوی په ژوند او پس له مرګه یې.

❖ د مور او پلار د حقوقو د تقصیر په صورت کې د توبې ایستلو لپاره هلې ځلې او په خپل نفس کې څه نه پېښول.




۱- دا چې د الله ﷻ په عبادت، د مور او پلار سره د نیکۍ امر عطف شوی دی دا په څه دلالت کوي؟

۲- د مور او پلار یا له دوی څخه د یوه په وړاندې د (اف) کلمې د منع لامل او سبب څه شی دی؟

۳- هغه چارې چې اولاد یې د والدینو لپاره ترسره کوي، په مبارک آیت کې ورته اشاره شوې ده، هغه څه دي، واضح یې کړئ؟

۴- له والدینو سره په خبرو کولو کې اولاد باید له کوم اسلوب څخه کار واخلي، دا حکم له ذکر شویو آیتونو څخه راوباسئ؟

۵- اولاد د مور او پلار په حق کې باید څرنګه دعا وکړي؟




د قرآني آیتونو او نبوي احادیثو په رڼا کې له مور او پلار سره د نېکۍ په اړه یوه مقاله ولیکئ چې له پنځلسو کرښو څخه کمه نه وي.

درویشتم لوست:

## د خپلوانو، مسکینانو او مسافرانو حقوق

﴿ وَءَاتِ ذَا ٱلۡقُرۡبَىٰ حَقَّهُۥ وَٱلۡمِسۡكِينَ وَٱبۡنَ ٱلسَّبِيلِ وَلَا تُبَذِّرۡ تَبۡذِيرًا ۝ إِنَّ ٱلۡمُبَذِّرِينَ كَانُوٓاْ إِخۡوَٰنَ ٱلشَّيَٰطِينِۖ وَكَانَ ٱلشَّيۡطَٰنُ لِرَبِّهِۦ كَفُورًا ۝ وَإِمَّا تُعۡرِضَنَّ عَنۡهُمُ ٱبۡتِغَآءَ رَحۡمَةٖ مِّن رَّبِّكَ تَرۡجُوهَا فَقُل لَّهُمۡ قَوۡلٗا مَّيۡسُورٗا ۝ وَلَا تَجۡعَلۡ يَدَكَ مَغۡلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبۡسُطۡهَا كُلَّ ٱلۡبَسۡطِ فَتَقۡعُدَ مَلُومٗا مَّحۡسُورًا ۝ إِنَّ رَبَّكَ يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقۡدِرُۚ إِنَّهُۥ كَانَ بِعِبَادِهِۦ خَبِيرَۢا بَصِيرٗا ﴾ [الإسراء:۲٦-۳۰]

**د کلمو او جملو معناوې**

| | |
|---|---|
| قَوۡلٗا مَّيۡسُورٗا: | نرمه، پسته او خوږه خبره. |
| مَغۡلُولَةً: | په ځنځيرونو تړلی، له بخل څخه کنايه ده. |
| تَبۡسُطۡهَا: | د لاس پراخول، پرانيستل، له اسراف څخه کنايه ده. |
| مَّحۡسُورًا: | پښيمانه، بېوسی. |

**ژباړه**

د خپلوانو، مسکينانو او مسافرو حق پوره ورکړه او بې ځايه لګښت مه کوه، بې ځايه لګښت کوونکي د شيطان وروڼه دي او شيطان د خپل رب ناشکره دی. که ته له هغو اړو خپلوانو، مسکينانو او مسافرو څخه مخ اړوې، په دې اساس چې تر اوسه د الله ﷻ د هغه رحمت (مال) په لټه کې يې چې ته يې هيله من يې، نو هغو ته ښه او نرم ځواب ورکړه، مه خپل لاس تر غاړې تړه او مه يې بيخي داسې غځولی پرېږده چې په خپله بېوسی پاتې شې، ستا رب چې چاته غواړي روزي پراخوي او چاته يې چې خوښه شي تنګوي يې، هغه د خپلو بندګانو له حاله باخبر دی او هغوی ويني.

**تفسير**

**له خپلوانو سره نيکي**

په دې آيتونو کې الله تعالی خپلو بندګانو ته ډېرې لارښوونې کړې دي ترڅو د هغو په واسطه خپل نفسونه پاک کړي او خپله ټولنه له هر ډول بديو او ناوړو پايلو څخه وژغوري.

الله تعالی فرمايي: ﴿ وَءَاتِ ذَا ٱلۡقُرۡبَىٰ حَقَّهُۥ وَٱلۡمِسۡكِينَ وَٱبۡنَ ٱلسَّبِيلِ وَلَا تُبَذِّرۡ تَبۡذِيرًا ﴾ الله تعالی په دې آيت کې په نيکۍ ، احسان، صله رحمۍ او د خپلوانو محتاجانو او تش لاسو سره په مرسته امر کړی دی.

په دې آيت کې نورو مستحقينو باندې د خپلوانو مخکې کول د دې لپاره دي چې خپلوان پر نورو د لومړيتوب حق لري، ځکه له خپلوانو سره احسان او نيکي، پر هغو باندې صله رحمي او صدقه ده.

**له اسراف څخه ډډه کول**

الله تعالی له اسراف او زيات لګښت څخه منع کړېده، پرته له ضرورته او بيځايه د مال او پانګې مصرفولو ته اسراف يا تبذير ويل کېږي په دې آيت کې له اسراف څخه د منعې علت داسې بيان شوی دی: ﴿إِنَّ ٱلۡمُبَذِّرِينَ كَانُوٓاْ إِخۡوَٰنَ ٱلشَّيَٰطِينِۖ وَكَانَ ٱلشَّيۡطَٰنُ لِرَبِّهِۦ كَفُورًا ﴾.

يعنې: مبذرين او اسراف کوونکي يې د ناوړو صفتونو په لرلو سره له شيطانانو سره تشبيه کړي دي، ځکه شيطانان د الله د نعمتونو په وړاندې شکر نه باسي او يو شی بيځايه او په نامناسب ځای کې ږدي، په ځمکه کې فساد خپروي او خلک ګمراه کوي. په همدې ترتيب اسراف کوونکی په دې صفتونو کې له شيطانانو سره شباهت او همغږي لري، البته په دې تشبيه کې اسراف او تبذير بد او ناوړه معرفي شوي او پرېښودلو ته يې ترغيب او تشويق ورکړل شوی دی، ځکه عاقل انسان په هېڅ صورت نه غواړي چې د شيطان په شان وي.

**له تنګلاسو او مسکينانو سره خوږې خبرې کول**

په تېر شوي آيت کې الله ﷻ بداياان د خپلوانو او محتاجانو سره نيکۍ او احسان ته تشويق کړل په وروستيو آيتونو کې د هغو کسانو بيان دی چې سخا يې عادت وي، خو دا مهال د نفقه کولو او مال لګولو وس نه لري او له الله تعالی څخه دا هيله کوي که چېرې ده ته څه پانګه او پيسې لاس ته ورشي، نو هغه به صدقه کوي. الله ﷻ ددوی په هکله داسې فرمايي: په داسې حالت

کې له خپلوانو او محتاجانو څخه په لطف او نرمۍ ببښنه وغواړئ، ترڅو د هغوی زړونه دردمند نشي.

﴿وَإِمَّا تُعۡرِضَنَّ عَنۡهُمُ ٱبۡتِغَآءَ رَحۡمَةٖ مِّن رَّبِّكَ تَرۡجُوهَا فَقُل لَّهُمۡ قَوۡلٗا مَّيۡسُورٗا﴾

یعنې که ته له دغو خپلوانو او مسکینانو او مسافرو څخه په دې اساس مخ اړوې چې تر اوسه د خپل رب د هغه رحمت (مال) په لټه (انتظار) کې یې چې ته یې هېله من یې، نو هغوی ته نرم ځواب ورکړه، له هغو څخه ببښنه وغواړه او خوږه خبره ورته وکړه، ترڅو له تا څخه خپه او خواشینی نشي.

په دې مبارک آیت کې د هغو مؤمنانو لپاره لارښوونه ده چې د اړو کسانو سره د مرستې کولو څخه عاجز دي، نو دوی دې د الله ﷻ در بار ته دعا وکړي، ترڅو الله ﷻ ورته دولت او پراخه روزي نصیب کړي چې بیا یې د الله ﷻ په لاره کې ولګوي او د خپلوانو او بېوزلو له مرستې څخه مال ونه سپموي، خو په هغه صورت کې چې له دوی سره د مرستې لپاره څه نه وي، نو له دوی څخه دې په خوږه او نرمه ژبه معذرت وغواړي.

**د مال په مصرفولو کې اعتدال او منځلاریتوب:**

الله تعالی بندګان له اسراف او بخل څخه منع کوي او په لګښت کې ورته د اقتصاد او میانه روۍ لارښوونه کوي، الله تعالی فرمایي:﴿ وَلَا تَجۡعَلۡ يَدَكَ مَغۡلُولَةً إِلَىٰ عُنُقِكَ وَلَا تَبۡسُطۡهَا كُلَّ ٱلۡبَسۡطِ فَتَقۡعُدَ مَلُومٗا مَّحۡسُورًا﴾

یعنې مه خپل لاس د بخل او شومتیا له وجې په خپلې غاړې پورې تینګ تړه او مه یې ډېر پراخوه چې په دواړو صورتونو کې به له پښېمانتیا او ملامتیا سره مخ شې.

مطلب دا دی چې مؤمن انسان باید له اعتدال او میانه روۍ څخه کار واخلي، بخیل ونه اوسي لکه د چاچې لاس په ځنځیر د غاړې سره تړل شوی وي او ونه شي کولای چې انفاق او صدقه ورکړي، همدارنګه مسرف او مبذر هم ونه اوسي، لکه: هغه څوک چې خپل لاس پرانیزي او هېڅ شی یې په لاس کې پاتې نشي.

نو د بخل او اسراف دا پایله ده چې خاوند یې هم د الله ﷻ له لوري، هم د خلکو له لوري او هم د خپل نفس له لوري د ملامتۍ وړ ګرځي، نو دا دواړه (بخل او اسراف) بد او ناوړه صفتونه دي چې د الله ﷻ رضا پرې نشي حاصلیدای.

**په روزۍ کې پراخي او تنګي**

بیا الله تعالی فرمايي: ﴿إِنَّ رَبَّكَ يَبۡسُطُ ٱلرِّزۡقَ لِمَن يَشَآءُ وَيَقۡدِرُۚ إِنَّهُۥ كَانَ بِعِبَادِهِۦ خَبِيرَۢا بَصِيرٗا﴾

يعنې: پوه شه، ستا پالونکی چې هر چا ته وغواړي هغه ته پریمانه روزي ورکوي او هر چا ته چې وغواړي د روزۍ دروازې یې تنګوي. هغه د خپلو بنده ګانو پر حال ښه خبر دی او هغوی ویني.

بندګانو ته د روزۍ پریماني او کموالی د الله ﷻ په ارادې او د هغه په حکمت او بشپړ علم پورې اړه لري. الله ﷻ د خپلو بندګانو په حالاتو ښه خبر او لیدونکی دی. الله تعالی ښه پوهېږي چې چا ته د روزۍ پراخي مناسبه ده او څوک دی چې فقر او تنګلاسي یې فاسدوي. همدارنګه الله ﷻ پوهېږي چې ځینو بندګانو ته یې یوازې فقر او تنګلاسي مناسبه ده. کله کله د روزۍ پریماني او تنګلاسي د بندګانو لپاره آزموینه وي، نو الله ﷻ د خپلو بندګانو په ټولو حالتونو ښه خبر او لیدونکی دی.

**فعالیت**

زده کوونکي دې د ښوونکي په لارښوونه د مرستې او صدقې د ښېګڼو، او همدارنګه د بخل د ناوړو پایلو په هکله د آیتونو او نبوي احادیثو په رڼا کې بحث وکړي.

### د لوست ګټې او لارښوونې

- ❖ د خپلوانو د حقوقو د ادا کولو واجبوالی، له هغوی سره صله رحمي او د بېوزلو او مسافرانو مرسته.
- ❖ د اسراف او تبذیر حراموالی، له اسراف څخه کرکه او د مسرف تشبیه کول له شیطان سره.
- ❖ هغه څوک چې د انفاق او صدقې ورکولو وس او توان نه لري هغه ته په کار ده چې په نرمو او خوږو خبرو سره معذرت وغواړي.
- ❖ له الله ﷻ څخه د مال غوښتنه، ترڅو یې د الله ﷻ په لاره کې ولګوي.
- ❖ په انفاق او صدقه کې میانه روي او اعتدال، له بخل او اسراف څخه ډډه کول.




۱-هغه حقوق چې خپلوانو، تنگ لاسو، محتاجانو او مسافرانو ته یې ورکول واجب دي کوم دي؟

۲- د تبذیر معنا څه ده، د هغه د نهې علت څرگند کړئ؟

۳- څوک چې سوالگر ته د ورکړې لپاره څه ونه لري، څه باید وکړي؟

۴- د لاندنیو چارو لپاره له قرآني آیتونو څخه دلیل راوړئ؟

الف- اسراف د خپل خاوند لپاره د ملامتۍ او پښېمانۍ لامل گرځي.

ب- د روزۍ کموالی او تنگ لاسي د الله ﷻ له پلوه پر خپل بنده، د قهر او غوسې په معنا نه دی.




- د خپلوانو، مسکینانو او مسافرانو حقوق په لنډه توگه په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

- د بخل او شومتیا ناوړې پایلې په خپلو کتابچو کې ولیکئ.

# په معاملاتو کې عدالت او مسؤوليت

﴿وَأَوۡفُواْ ٱلۡكَيۡلَ إِذَا كِلۡتُمۡ وَزِنُواْ بِٱلۡقِسۡطَاسِ ٱلۡمُسۡتَقِيمِۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ وَأَحۡسَنُ تَأۡوِيلٗا ۝ وَلَا تَقۡفُ مَا لَيۡسَ لَكَ بِهِۦ عِلۡمٌۚ إِنَّ ٱلسَّمۡعَ وَٱلۡبَصَرَ وَٱلۡفُؤَادَ كُلُّ أُوْلَٰٓئِكَ كَانَ عَنۡهُ مَسۡـُٔولٗا ۝ وَلَا تَمۡشِ فِي ٱلۡأَرۡضِ مَرَحًاۖ إِنَّكَ لَن تَخۡرِقَ ٱلۡأَرۡضَ وَلَن تَبۡلُغَ ٱلۡجِبَالَ طُولٗا ۝ كُلُّ ذَٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهُۥ عِندَ رَبِّكَ مَكۡرُوهٗا ۝ ذَٰلِكَ مِمَّآ أَوۡحَىٰٓ إِلَيۡكَ رَبُّكَ مِنَ ٱلۡحِكۡمَةِۗ وَلَا تَجۡعَلۡ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَتُلۡقَىٰ فِي جَهَنَّمَ مَلُومٗا مَّدۡحُورًا﴾ [الإسراء:٣٥-٣٩ ]

## د کلمو او جملو معناوې

بِٱلۡقِسۡطَاسِ ٱلۡمُسۡتَقِيمِۚ: په عدل او انصاف، په برابره تله.

تَأۡوِيلا: نتيجه او پايله.

لَا تَقۡفُ: پيروي مه کوه.

مَرَحًا: په خيال او تکبر.

مَّدۡحُورًا: رټل شوی، شړل شوی، او د الله له رحمته لرې.

## ژباړه

او پوره کړئ پيمانه کله چې پيمانه کوئ، او تول په سمه تله وکړئ، دا سمه کړنلاره ده او ښه پای لري، په هغه څه پسې مه ځه چې تا ته د هغه په اړه علم او پوهه نه وي.

بیشکه غوږ او سترګه او زړه هر یو له دغو (دریو واړو) دي له هغه څخه پوښتنه کړی شوی (په قیامت کې چې ولې دې په دنیا کې ګناه کوله) او مه ګرځه په ځمکه کې په خیال (او تکبر) بیشکه چې ته به ځمکه څيرې نه کړې او له سره به ونه رسیږې (د) غرونو (سرونو) ته له جهته د اوږدوالي. ددې ټولو کارونو بد اړخ ستا د رب په وړاندې خورا ناکاره (ناخوښه) دی.

دا هغه د حکمت خبرې دي چې ستا رب تا ته وحې کړي دی او له الله ﷻ سره کوم معبود مه نیسه، که نه نو په دوزخ کې به ملامت شوی او رټل شوی وغورځول شې.

تفسیر

**په پوره پیمانه ورکولو امر**

الله تعالی خپلو مؤمنو بندګانو ته امر کوي: ﴿وَأَوۡفُواْ ٱلۡكَيۡلَ إِذَا كِلۡتُمۡ وَزِنُواْ بِٱلۡقِسۡطَاسِ ٱلۡمُسۡتَقِيمِۚ ذَٰلِكَ خَيۡرٞ وَأَحۡسَنُ تَأۡوِيلٗا﴾.

کله چې مو نورو ته څه شی پیمانه کول نو پوره یې پیمانه کوئ او که څه مو وزن کول، نو هغه هم پوره وزن کړئ، ځکه دا کار په دنیا او آخرت کې ستاسو په خیر او ښېګڼه تمامیږي، خلک له تاسو سره معاملاتو ته تشویقیږي او اخروي ثواب هم پرې ترلاسه کیږي.

په دې ځای کې نوروته پوره ورکول ځانګړي شوي دي، ځکه دلته د پلورلو خبره ده چې زیاتره په هغه کې کمی واقع کیږي، خو د اخیستلو پر مهال انسان حریص وي او نه غواړي چې حق یې کم شي.

**په مجهولو شیانو پسې نه تګ**

بیا الله تعالی انسان ته امر کوي: ﴿وَلَا تَقۡفُ مَا لَيۡسَ لَكَ بِهِۦ عِلۡمٌۚ إِنَّ ٱلسَّمۡعَ وَٱلۡبَصَرَ وَٱلۡفُؤَادَ كُلُّ أُوْلَـٰٓئِكَ كَانَ عَنۡهُ مَسۡـُٔولٗا﴾ یعنې د څه شي په هکله چې علم او اطمینان نه لرې هغه شی هیڅکله مه تعقیبوه، ځکه غوږونه، سترګې او زړه ټول مسؤول دي، نو انسان باید د خپل علم په حدودو کې واوسیږي او د هغه څه په هکله چې نه پوهیږي خبره ونه کړي،

لکه: څرنګه چې انسان د بې فايدې خبرې په اورېدو، دروغو او غيبت کولو د سوال او محاسبې لاندې راځي، همدارنګه به د منکراتو او عورتونو په کتلو ورسره محاسبه وشي. د انسان اعضا او غړي، لکه: غوږ، سترګې، زړه او داسې نور له پوښتنې لاندې راځي، دا ټول غړي به په قيامت کې په خبرو راشي او د انسان په ګټه يا تاوان به ګواهي ورکوي.

نو پر انسان لازم دي چې هوښيار اوسي، له ړانده تقليد څخه ځان وژغوري، کوم کار چې ترسره کوي په هغه کې د الله تعالی ويره په نظر کې ونيسي او پرته له بشپړ باور او يقين څخه دې حکم نه کوي او پر څه چې نه پوهيږي له هغه څخه دې ډډه وکړي.

**له تکبر څخه ځان ژغورل**

الله تعالی انسان ويروي، چې له ځان لوی ګڼلو او تکبر څخه ډډه وکړي، نو فرمايي:

﴿وَلَا تَمْشِ فِي ٱلْأَرْضِ مَرَحًا ۖ إِنَّكَ لَن تَخْرِقَ ٱلْأَرْضَ وَلَن تَبْلُغَ ٱلْجِبَالَ طُولًا﴾

يعنې: ای انسانه! په نخرو، کبر او بې اندازې زياتې خوشالۍ په ځمکه کې حرکت مه کوه، په خپل قوت، مال، دبدبه او چوکۍ د وياړ او لوړوالي احساس مه کوه، اې انسانه! څرنګه په ځمکه کې تکبر کوې په داسې حال کې چې نشې کولای په خپلو قدمونو ځمکه وشلوې، څرنګه د خلکو په وړاندې تکبر کوې په داسې حال کې چې په ځان لوی ګڼلو او لوړ الوتلو سره نشې کولای د غرونو څوکو ته ورسيږې، ته له کمزوري او بېوسي مخلوق څخه پرته بل څه نه يې، نو له تا سره نه ښايي چې تکبر وکړې، ته په خپل تګ او خپله راشه درشه کې له نورو سره عاجزي او خاکساري غوره کړه، الله ﷻ فرمايي: ﴿كُلُّ ذَٰلِكَ كَانَ سَيِّئُهُۥ عِندَ رَبِّكَ مَكْرُوهًا﴾ يعنې له ټولو هغو کړو وړو څخه چې الله ﷻ منع فرمايلې هغه ټول د الله ﷻ په وړاندې ناوړه او ناکاره دي، نو بايد له هغو څخه ځان وژغورې، ترڅو د الله ﷻ رضا حاصله کړې.

﴿ذَٰلِكَ مِمَّآ أَوْحَىٰٓ إِلَيْكَ رَبُّكَ مِنَ ٱلْحِكْمَةِ ۗ وَلَا تَجْعَلْ مَعَ ٱللَّهِ إِلَٰهًا ءَاخَرَ فَتُلْقَىٰ فِي جَهَنَّمَ مَلُومًا مَّدْحُورًا﴾. يعنې دا ځينې حکمتونه دي چې الله ﷻ درته د هغه وحې کړې ده

او هېڅکله د واحد الله ﷻ سره څوک شریک مه نیسه، کنه نو ملامت به شې او دوزخ ته به واچول شې.

ددې آیت عامه معنا دا ده چې الله تعالی پېغمبر ﷺ ته خطاب کوي او فرمايي: هغه څه چې په هغه مې تا ته امر کړی او یا مې له هغه څخه منع کړی يې هغه د الله ﷻ محکم کلام دی، نو هغو کسانو ته چې له تا څخه پیروي کوي لارښوونه وکړه چې په هغو شیانو چې پرې تشویق شوي عمل وکړي او له هغو شیانو چې ورڅخه منع شوي ځانونه وژغوري.

بیا الله تعالی له شرک څخه منع کوي او دا څرګندوي چې هر څوک له الله تعالی سره شریک نیسي، نو هغه به په داسې حالت کې دوزخ ته واچول شي چې هم به د خپل نفس له لوري او هم به د نورو خلکو له لوري په ده ملامتي ویل کېږي او د الله ﷻ له رحمت څخه به لرې وي.

**د لوست ګټې او لارښوونې**

د دې لوست ګټې دا ډول دي:

- د الله ﷻ په اوامرو عمل او التزام کول، ډېرې زیاتې دنیوي ګټې او په آخرت کې د الله ﷻ په وړاندې انسان ته ستر اجر ورپه برخه کېږي.
- د پیمانې پوره ورکول واجب دي باید په تللو او پیمانه کولو کې عدالت او انصاف مراعات شي او له کمولو څخه يې ډډه وشي.
- په یوه مسئله کې پرته له علم او پوهې خبرې او حکم کول، له منکراتو څخه دي چې انسان باید له هغه څخه ځان وژغوري.
- په لاره تللو کې پر ځان ویاړل، نخرې او تکبر کول حرام دي.




۱- په دنیا او آخرت کې د پیمانې پوره کولو ګټې څه دي؟

۲- د هغه څه چې انسان ته پرې پوهه حاصله نه وي، د هغه له پیروۍ او عمل څخه د منع سبب څه دی؟

۳- د انسان غړي او اندامونه د قيامت په ورځ له څه شي څخه پوښتل کېږي او بيا څرنګه ځواب وايي؟

۴- متکبر انسان ته د يادونې سبب چې څمکه شلولی نشي او د غرونو لوړوالي ته رسيدلی نشي څه دی؟




په مطففين سورت کې د اندازې او تلې د کمولو کيفيت ذکر شوی، نومورې آيتونه تلاوت او په خپلو کتابچو کې يې وليکئ.

**وصلى الله تعالى على خير خلقه محمد و على آله و أصحابه أجمعين، و آخر دعوانا أن الحمد لله رب العالمين**